م[illegible]ه خاورې ايرى تل شي
كه مجاهدو منځ كې و مشي اتفاقونه
مومنان تهول په دين مين دي
حو افغانان وربانديې سر- مال وركوينه
مخ يې په دواړه خوا توريږي
چاچې د كفر غلامي منلې وينه
مجاهدين دى بيداراوسي
ببرك په روس باندى ملكونه خرڅوينه
مجاهدين لكه زمريان دي
، زمريان به خنكه له پرانو ماتې خورينه
ما چې راكټ په اوږه كيښود
گوره روسي ټينكونه لارې وركوينه
موري پنځ ډزى مې راواخله
زما په خوږ وطن يرغل دې زه ورځمه
ما دپكتيا له غرونو جار كړی
چې پكې مات شول د روسانو كتارونه
ما دجهاد سنگر ته يوسی
. زه راكټ په ډزو زړه ټكوروومه

مسکو عجب سپي دي روزلی
دودی خوری خپله خدمت نوروته کوینه
مجبور افغان د روس دلاسه
لکه بم ځان سره عالم تباه کوینه
مجبور دي غل یا کمونست شي
نالایقان چې دقدرت هوا لرینه
مسکو به دزونه خبریږي
دماشومانو اعتصاب یې لړزوینه
ماشومان غواړي به شیلوکې
کلك د ندو ته د روسي جنرال هډونه
مسلمانانو راځه یو شو
چې ځان پوه شی دامنلی قدرتونه
مین به هله درته وایم
چې به ښونو والي بال کوي مینه ؟
مخې ته ورشي وطن پیغلو
پر شهیدانو باندی واچوی گلونه
مخې تر ورشي شهیدان دي
دیری خوږلي به تنو باندی زخمونه

مـــونږ مسلمـــان پـــه نـــوم افغـــان يوو
مونـــږه ورکـــړي هر دښمن ته ځـــوابونه

( ن )

،، نـــاهـــيدې،، داســـې نـــارې وکـــړی
وررونـــو راپـــاڅـــی چـــې وطن آزادوونه
نـــوربه يـــې هيـــڅ پـــه لاس ورنـــشي
روســـان ځانـــونه په شرمونو شرموينه
،،ناهـــــيدې ،، دافـــــخر دې بـــس دي
چې فـــرشتې دې پـــه سروانښکو لمبوينه
نـــه بـــه بـــبرك –نه بـــريژنـــيف وي
خـــود جنگ بـــدی خاطـری به پاته وينه
نـــورحـــقا ثـــق که روســـان پټ کا
دچا به پـــت کړي پـــارسل کړي تابوتونه ؟
نـــن بخـــتوربه هـــغه ښـــوك و ي
چې دوطـــن غـــــزا لاړشي شهيد شينه
نيمـــبگړی ژونـــد فـــاني دنـــيا د ه
ډير به لـــه دې ژونـــد نه په تمه تللی وينه

وطــن کــې چیغه شوه غــــزا ده
ځوانان تــوپونو له ورځي خالي لاسونه
وطــنه اتــه دی خــپه نــــه وي
که وورکی مړه شي جینکۍ به ځنګ ته ځینه
وروږجـــانه کــله مــې هیــریږي
ستاښکــــلی سترګي چنګوبنه اوسپین غابښونه
وطــنه څــوچــې زه ژونــدی یم
ستا دخــدمت نــه به وانخلمه لاســونه
ویسـبــي جــذبي څنــګه ویدې کړم
ماخو ډیــری دهــډیــرو رانــنګوینه
ولــې بــه نه ژاړمــه خــــدایه
چــې موتي خــوري دبرچوپه څوکومرینه
وروږجــــانه مــې لاړومجــاهد شــو
دلویــو غـروزمریان یــې مخې ته ورځینه
ورځــــم ،ورځــم ځان به شهــید کړم
دبې ننګۍ ژونــدون مې خوښ نه دی میــنه
وطــن شهیــد په وینــو ســـورشو
لکه غــاتــول چــې پســرلي سپړلی وینه

وایي دغرب نمایندد دې
څوك چې دقام په ګټه ځان ویوهوینه
وطن زمونږ، مونږ به پری اوسو
روسان به ځي څوری لکې او څوروغوړونه
وطن دچادي ؟ دهغوی دې
چې څوك دخدای دپارسرپری ورکوینه
وطن دهغه زمرو ځای دې
چې له راکټ سره سرونه جنګوینه
وینی یې سری له تنه څاڅي
جارسم به داسی ونو ویاړي تاریخونه
وطن ته ګورم زړا راسي
جی شانه ګورم مجاهدد حدای لرینه
ورکته شهیده را رسیږد
څاني سنګرند دې یواځې درغلمه
ورته سویك ګردی واخله
اسلامي ننګ دې بې ننك نشی میندې
ولی زړد سوړ کرم را رسیږی
دا ګام په ګام د شهیدانو زیارتونه
ورکه شهیده را رسیږه
قبر دی ورك دې تش سنګردي تودومه

وره نجلې په منده راغله
چې ددښمن تهانګوته ځښ کاندې مینونه
وطنه !دومره په ماګران يې
چې ستا په يادکې مدام اوښکې تويږمه
ورو !بوري توپك راواخلي
زمونږ په ګران وطن روسان کړي يرغلونه
وورکي پکتيا په مورچوخيژي
جونو لاسونه په دوعا نيولي دينه
ولې به نه ژارم عالمه
له نامه ورك شول دځوانانو کنډکونه
وطن ګټلی رانه نه شي
روسيه اولې ورانوې ودان کورونه
وطن دپت -عزت ده ښه
ځکه غازي وربانډې سرقربانوينه
وطنه !تاپسې چې ژاړم
سترګر مې وکړل دچينو په شان زېړونه
وطنه !ځوك به دې آزاد کړي
دانګيالي ځوانان خوتورې خاورې خورينه
وروره !کارتوس -ټوپك تيارکړه
دسرك غاړې ته روسان راغلي دينه

( هو )

هیلي کوپتر طیارې راعلې
مجاهدناست دي داهشکې پرې چلوینه
هغه به څنګه ښه ساعت وي
چې له وطنه روسان تښتې تېښت سرونه
هې دهغې ورځې زلزله !
چې درنه تلمه ته مې پرېښودې وطنه
هغه به څه تورد در وکړي
چې معنوي ژوندیه اوربشوورکوینه؟
هغه انسربې سرد سنه دي
چې پاس په سر دپردوسیورې قبلوینه
هرڅه چې تیر شي هغه هیرشي
څنګه به هیر شي دتنکونجونوقتلونه
هغه ورځ دبره لرې نه ده
(۹۱)
چې دیوورال په غره دحق ناري وهمه
هغه سوتال مستوی سیمې
چې دتینکونوید زړه اور ولګوینه

( ی )

یتیمان پاته شول وران کورکي
شهید ه ولاړي دجنت کوه سیلونه
یتم چي ژاړي پروانکړي
پلاربې شهید دي سترګي چاته واړوینه
یوه اله ګوله لاپه کارده
دانه مانه سوډرکه چیرته غلی وینه
یابه عالم رانه حیران کړم
یابه مي پرخي په ګوراوښکي څڅوینه
یابه له سروطن پاکیږي
یابه پایږي دورك شوي قام نکلونه
یابه مي خپل وطن شي
یابه مي غوښي دبرچو په څوکو ځینه
یابه سره بیرته ملك راپریږدي
یابه په سره میدان کي اورلګومه
یابه افغان په اورنینه شي
یابه سوځیږي دلینن کثیف هډونه
یاد تکبیر حقه ناره وه
یاسپین میدان چه سورلښکر وتمبوینه

# نوم سبنود

۱-حلیم - دکاپیسا ولسوالي پواتل مجاهد وُ

۲-ببرك - مراد يې ببرك کارمل دی

۳-اناهیتا - دپرچمیانو درهبری غړی

٤-سپین جومات -دڅاځیو دهاشم خیلو دری مشهورجومات دی

٥-امینه - مرادېي حفیظ الله امین د ی

٦-ببرکه -مرادېي ببرك کارمل دی

۷-لینن - په روسیې کې دکمونیزم بنسټ ایښودونکی

۸- آریوب - مرادېي دڅاځیو سیمه ده

۹- تبره کیه - مرادېي دنورمحمد تره کي ښځه دې

۱۰- کارمله -مرادېي ببرك کارمل دی

۱۱- اوسنی افسر- مراد يې دافغانی مزدورصاحب منصبانو ښځه دی

۱۲ - دخره سره - مرادېي ببرك کارمل د ی

۱۳- چونۍ -مرادېي دڅاځیو چونۍ ښځه د ی

۱٤- سپېرۍ- خوست ته نږدې دیو ه کلي نوم دی

۱٥- سروبی - په تنهیو کې دمجاهدینو غربی محاذ دی

۱٦- بادروان -پرچمیانو په تمسخرتره کی ته بادروان ویل
۱۷-حکیم - دکاپیسا ولسوالی یو اتل مجاهد وچې شهید شو
۱۸- ویتنامه - مرادیې ویتنام دی
۱۹- حقاني - دپکتیا ولایت یو نامتو قوماندان د ی
۲۰- ودکا - یودول روسي شراب دي
۲۱- میرویس - مرادیې میرویس نیکه دی
۲۲- هورا- دخوشحالی په وخت کې به کمونستانو هوراویلی
۲۳- خرقه - مراد یې دکندهاردخرقی مبارکی ثخه د ی
۲٤- جانیخیل - دپکتیا ولایت یو اتل مجاهد وچې شهید شو
۲۵- جنراله - مراد یې دببرك کارمل پلاردی
۲٦- جنرال حسین - دکارمل پلاردی
۲۷- نابغه - مراده یې تره کې دی چې کمونستانو به نابغه باله
۲۸- جنت گل - یو اتل مجاهدو چې شهید شو
۲۹- اندیرا - مرادیې اندراگاندی دی
۳۰- ژوره - دژوره غوند ی مرادیې دی چې دپکتیا په ولایت کې موقیعت لری اوحقانی پوری اړه
۳۱- غزنوي - ولسی شاعر دی
۳۲- تاج گل - یو مجاهد دی
۳۳- سید جان - دیوشاعرنوم دی

سحر ، سبا به رنها راشی
روس به په شا شی لکه غل اودغله ملؤنه
ځلا دتورو دبریښنا ده
دروس تورتم به په جهاد له منځه ځینه
روسان به ټول دلته دوبیږی
دتیښتی لاری تری اوس واره ور کی دینه

په لنډیو کی دپردیو دګوډاګیانو او زموږ دکورنیو وطن پلورونکو په مقابل کی دخلکو کرکه هم ښه جوت ځان ښیی ، کله چی ببرك کارمل پرروسیی ټانکونو سپور کابل ته راغی . دهغه څخه زموږ خلکو خپله کرکه څرګنده کړه داحالت لنډیو څومره ښه منعکس کړی :

ببرکه دا ګټه دی بس ده
ژوندی اومړی دی وطن نه قبلوینه
کارمله ! خونه دی تالاشه
دشاه شجاع تاریخ دی بیا راژوندی کنه
دوطن فروش کارمل له لاسه
روسان کورونه ورانوی ، مالونه وړینه

زموږ خلك ددی ښه سره چی په بی اتفاقی کی ترستونی ډوب دی خو دبهرنیو یرغلګرانو په مقابل کی بیا تل په یوه صف کی دجنګیدو مظاهره کړی داحقیقت دانګریزانو په مقابل کی ددوه

۵۰-گرو میکو - دبریژنف دوخت دبهرنیو چاروزیر
۵۱-رنګین - یو مجاهد و
۵۲-نجیبه - مرادي نجیب دکابل دمزدوررژیم مشردی
۵۳-منډیر - دڅاځیو یو سمسور غراو دره ده
۵٤-عیسیٰ - دڅاځیو یواتل مجاهد دی
۵۵-عبدالله - دحفیظ الله امین په وخت کی دپلچرخی دزندان قوماندان و
۵٦-غروال - یو پېژندل شوی شاعردی
۵۷-فضل خالق - دڅاځیو د هاشم خیلو دسیمی یو مظلوم شهید
۵۸ - لاهور- دپاکستان دپنجاب ایالت ترټولو لوي ښار
۵۹-لعین - حفیظ الله امین ته خلکو دلعین لقب ورکړی و
٦۰-ببر - مرادیې ببرك کارمل دی
٦۱-یورال - یو غر دی چی اسیا او اروپا سره بیلوی



# دلیکوال آثار

۱- دارمانونو ځولۍ - دلنډو کیسو مجموعه - چاپ شوی

۲- ویښې جذبې، روغ ټوپانونه - دجهادي لنډیو ټولګه

۳- دپکتیا ولسي شاعران - دپکتیا ولسي شاعرانو تذکره - چاپ ته تیار

٤- مونږ په افغانستان کې څه ولیدل ؟- دنیول شوو روسي پوځیانو خاطرې - چاپ ته تیار

۵- دننګ غرونه - دلنډو کیسو مجموعه - چاپ ته تیار

٦- دنیل دمیرونه ستومانیدونکې قافله - داخوان المسلمین دعام مرشد یاداشتونه - چاپ ته تیار

۷- جهادي فولکلور - دجهادي فولکلورمجموعه - چاپ ته تیار

۸- نخښې - دټکلونو مجموعه - چاپ ته تیار

۳٤ - سپوږمي - یواتل مجاهد و .
۳۵- خلیل الرحمن - دحقاني صاحب وروردی اوډیر تکړه تانکست اومجاهد دئ
۳٦- چکن - یودول رخت دی .
۳۷-چمچه مست - دهیواد په شمال کې دیو سیند نوم ده
۳۸-میگی - یو ډول روسی جیټ جنگي الوتکې دی
۳۹-ورکټون - دماشومانو دروزلو ځای
٤۰-ناهیدی - دکابل ښار یو اتله شهیده چې دمظاهر و په دوران کې په شهادت ورسول شوه
٤۱-باختر- دختیځ په معنی چې مرادئې افغانستان دی
٤۲-پراگ - دچکسلواکیامرکزدی
٤۳-سید خان - دحقاني صاحب دجبهاتو یو تکړه مجاهد او ولسی شاعردی
٤٤-بړی - خوست ته نږدی دمجاهدینومرکز دی
٤۵-گلم جم - دمزدور رژیم دملیشی گروپ دی
٤٦- امو - یولوي سیند دي چې افغانستان اوروسیه سره بیلوي
٤۷- وفادار - اصل نوم یې سید خان اوولسي شاعر دي
٤۸ کمریو - کابل ولایت پوري مربوط یوه سیمه ده چې دکارمل پلارني ځاي دي .
مخالف و
٤۹-ساخاروف - روسی ساینس یوه چې پرافغانستان دتیری

جګړو سربیره دروسانو په مقابل کې دجهاد څخه ښه ځرګندیدلی شي ، ګورو چې إفغانان دنژاد ، قبیلی او ... پرته څنګه دروسانو دیرغل په مقابل کې یو صف کې ودریدل ، اوپه خالی لاس خو دایمان په زور یې دروسانو مقابله وکړه ، او هغوی یې په رسوا یې دامو له سیند څخه پورې باسل لنډیو داحالت په ځومره سوچه توګه خوندی کړی :

دسکندر چې زره تری شین و

په هغو غرو کې نن روسان په ژړا دینه

دافغانانو زور دی ولید

چې په تش لاس دی زغلوی ترکرملینه

دنیا ویل تانه منله

روسه شو ی خاوری ، ایری بادبه دی وړینه

اوبیا کله چې روسان وپوهیدل ماته یې مقدر ده اودخپل ماتی دژغورلو په خاطر یې سیاسی هلې ځلی پیل کړې ترڅودځان دتیښتی لپاره لار پرانیزی لنډیو داحالت په ځومره ښه توګه خپل لمن کې را نغاړی :

دافغانانو له غیرته

. روسانو واستول دسولې پیغامونه

دمجاهد له سترګو جارشم

روس یې له لاسه سیاسی چیغې وهینه

دلنډیو یوه ځانګرتیا داده ددی په خاطر چی زیاتره دی بی سوادو خلکو خصوصا ښځو له خوا ویل کیږی هم الفاظ اوهم واقعیتونه ډیر سوچه پکی پیېل شوی وی ، اودی ځانګرتیا پلټونکو ته خصوصا دبهرنیو اوغربی هیوادوپلټونکو ته ددی په خاطر چی پلټنی پر واقعیتونو متکی وی ددی زمینه په لاس ورکړی چی خپله پاملرنه دولسی ادب خواته وګرځوی .

„ دپښتونخوا دشعرهاراوبهار اثر لیکونکی جمیز ډارمستتر دخپل اثر په سریزه کی لیکی :

« ... په همدی توسن داوسنی افغانستان په باب داروپایانو لیکنی له تیرو تنو اوناسمو مطالبو ځخه ډکی دی خوددی سندرو (ولسی ادب ) له مخی دافغانستان دخلکو ریښتنی څیره اودپښتنو اصلی ډول راته روښانه کیږی اوموږ ته دپښتنو دزړه راز رابرسیره کوی . »

زموږ دجهاد ولسی ادبیاتو هم دجهاد ریښتنی اوسوچه حقایق په خپله لمن کی رانغاړلی اوکه څوك غواړی چی دجهاد پرواقعیتونو ځان پوه کړی اویا غواړی داسی څه ولیکی چی هغه پر واقعیتونو متکی وی حتمی ده چی دولسی ادب خواته به مخه کوی ، زموږ دجهاد ولسی ادب اوخصوصا لنډی ددی ترڅنګ چی دروسانو ظلمونو ، وحشتونو ، زموږ بدبختیو ، ویاړونو اوویرونو ته په خپلی غیږ کی ځای ورکړی زموږجهادی قهرمانان

اوریښتنی اتلان یی هم په سوچه ښه ستایلی :

دحقانی دتوری شرنگ دی ،

په روسی شوبلو باندی بل دی سره اوروته

لنډۍ زموږدجهاد ښه اوریښتنی حقایق دځان سره لری اوهریوه یی دهماغه حالت چی پکی ویل شوی ښه ترجمانی کوی ،لیدل کیږی لکه څومره چی په لنډیو کی دروسانو په مقابل کی زموږ دمجاهد ملت بی ساری مقاومت اودجهاد اتلان ستایل شوی په هماغه اندازه بیا دروسانو ترتیبنتی ورورسته دمجاهدینو ترمنځ بی اتفاقی پکی غندل شوی :

چی دنفاق بڼغ یی ترغوږ شی

دمجاهد په زړه کی بل شی سره اوروته

دجهاد تیرشول اوره کاله

خالقه خدایه اتفاق څوك نه کوینه

میړانه ، غیرت اوزړورتیا دپښتنی ښځی په نظر هغه معیارونه دی چی باید یوایډیال نارینه یی ولری په همدی خاطر دی چی پښتنی میرمنی یاښځی تل له خپل خاوند څخه ددی معیارونو دپوره کولو تمه کړی :

جانانه څه !! په کابل جنگ دی ،

په اسلام ننگ دی ، په دښمن وکړه بریدونه

توره په وینو افغان راغی

ځکه یی توره په سرو شونډو پاکومه
ترداکړی پکړی دی ځارشم
دروسی وینی تویوه گرانه مینه

په جهادی لنډیو کی په ډیره مختصره خوسوچه توگه دجهاد تاریخ خوندی شوی که لږ ورته ښه ځیر شو ددریارلس نکلن جهاد لوړی ژوری ، ویاړونه او ویرونه پکی لیدل شو ، زه چی اوس دا لنډی مخی ته اچوم دخپل هیواد دکلیو اوبانډو ویجاړ حالت داتلو مجاهدینو او سپیڅلو خوینډو کارنامی قهرمانی اوکړیکی می سترگو ته دریږی ، ماهم په همدی خاطر ترڅو توانیدلی وم دخپلو پرگنو اواتل ملت ویاړونه اوویرونه خوندی کړم دجهادی لنډیو دراټولولو تکل وکړ ، په دی لاره کی می ډیر زیار وایست کوښښ مې وکړی دهغو سیمو خلکو سره چی لنډی پکی عمومیت لری له نږدی وگورم اودهغوی په واسطي خوری وری لنډی راټولی کړم دهغوی زیات شمیر می چی ددی کارتمه ورته کیده دځینو ورونو په لاربښوونه پیدا کړل او دهغوی ښخه می ځنی لنډی لاس ته هم راوړی خو متاسفانه چی دومره زیات ښه نه وه ، زیاتره یی داسی وی چی یابه یی دنورو ورونو دراليږلو لنډیو سره ورته والی درلود اویا به می په کومی جهادی خپرونی کی لیدلی وی ، خو ددی سره سره می چی که چیرته کومه لنډی اوریدلی اویا می هم لوستلی هغه می خوندی کړی اوداکار اوس

هم جریان لری اودهغه لنډۍ چی تاسو یی په دی ورکورتی شانی کتاب کي لولی هغه څه دی چی زیاتره مي دخلکو اویو څه دسپیدی ددوه میاشتنی ادبی اوکلتوري مجلي اود« م پاسنی » دوطن ویرله اثر څخه راټولي کړي په کتاب کي مي لنډۍ دموضوعاتو په اساس نه بلکي دالفبا په اساس سره راوړلی او په کومو لنډیو کي چی دځینو ځایونو اوشخصیتونو نومونه راغلي هغه مي دکتاب په وروستی برخه کي د نوم سبنود تر نامر(اندکی) راوړی .

الو محمد الف «حقیار»

په پای کي دمحترم جلیل الدين څخه دزړه له کومی مننه کوم چی له ماسره یی دلنډیو په راټولولو کي مندۍ رامنډۍ کړي .

عوض الدین «صدیقی»

پاکستان ، کورم ایجنسی

بکن کمپ ، د ۱۳۷۰ کال دوری (۲۸)

## (آ-۱)

آسمان په ستوروښه ښکارېږي
په زمکه ښه دشهیدانو مزارونه
آخر به روسه زوی ته وایې
للوبچیه پښتانه راغلي دینه
افغان دچاغلامي نکړي
څکه دسرولمبوګرته وردانګینه
اوښکې له سترګونه بهیږي
چې راپه یادشي دشهید حلیم[1] یادونه
اي په سرولښکرو مسته !
پسته اِتر څو به دې له خپلو بل ساتینه
ارادت دې ته وائي خلکه !!
چې ببرک[2] اوس هم سفارت جاروکوینه
آخرزمان نه دی نوڅه دې ؟
چې دبیزوزوي په انسان حکم کوینه
اناهیتا[3] چې هندته لاړه
دروس لپاره درمسال جاروکوینه
ایمان په سخته کې ښکاره شي
لکه په شپه کې چې ځلیږي څراغونه
اَبلیسه ! درست عمرناکام وې
په کمونیزم دې کامیاب کړه ښادونه

افغانان ټول په دين مين دي
څکه روسيانونه يې ورك کړل ګودرونه
افغانستان به خداي آزاد کړي
تل خوښه نه وي سره روسان او داظلمونه
الله به بياوطن رڼا کړي
تل خوښه نه وي شورويان اوداظلمونه
افغانه ! زړې مې درباندې
دښمن مويوموټى ايرې شوباديې وړينه
افغانستان کې غلغلې شوې
زلميان ټوليږى په وطن سرورکوينه
افغانستانه ! آباد اوسې
خوښې افغان په دنيا وي تابه ساتينه
اوس چې ونه تښتي خلقيانو
له سپين ځومات نه طالب ورکړل آوازونه
امانتي مې ګورکې کېږدي !
دسنګرورونه مې ليدلوته راځينه
ابادوکليوکې غوغاشوه
چې ګران وطن ته سره کفارراغلي دينه
اشارتونه راته مه کړه !
زه دې په نيغوبريتودېره تيروتمه

افــغان دنــــيا کې شهــرت بيامونډ
دمــجاهد غيــرت ته ټول کړي سلامونه
افــغانســتان بــه خــدای آزاد کــړی
کمــونســتان به له غـــوړوخوړندوونه
افــــغانســــتان يــې بحرخون شو
دبحـــرهند ارمان يې زړه کې پاتې شونه
ای پـــه سنـــګرکــــې تـــوريالـيه
حمــله په جمــع باندې ډيرلري خوندونه
افـــغانــان داسـي غـــــيرتي دي
چـې په تــش لاس مقــابله دروس کوينه
افـــغاګان داسي ننـــګــــيالي دي
چـې نراوښځې، ماشــومان غزاکوينه
(۵)
امـــــينه تـــه لاډيــــر لعيــن وې
تاشهــيدان کـړل بيادې وويســتل لستونه
افغــــانســـــتان تــه نظــر وکــړی
هــره غــونډې دشهــيدانو بــــيرغونه
اول احمــــق دوهـــــم کافــــريې
(۶)
بــبرکه تاچې رنګ په روس کړل وطنونه
ای، ګـــــورســـــتانه بخـــتوره
چې درتيتيری سپينې خولې کاره بريتونه

الله بـــه بيـــاوطـــــن رنړا كــــړي
تل خـــوبه نه وي دادثـــورباراتــــونه
اول غـــازي بيامـــې شهيـــد کړې
زخمـــي مـــې مه کړې دتپومې بدراځينه
افغـــانه ! تـــوره ستـــامنــــصب دی
دانـــور عالم چې لاپې کړې خنـدا راځينه
افغـــــان اولـــس دســـرې اوردی
روس يې په بده چې وهې سامبول به شينه
اورمـــــی لمنــــی نـــه اخيســـتي
لــه روس نـــاولـــی نـــه ګیله کله کومه
افغـــانـــستان بـــه خـدای آزاد کـــا
کــه شـــاته واچـــووبې ځـــایه هـــوسـونه

( ب )

بـــبرکه ته چـــی پـــری راپيښ شوی
پـــه کيميا وی ګازودی خوړين کړل عالمونه
ببـــــرکه لـــه پلاره دی عـــاق شـــوی
ځکـــه وطـــن پـــه شوروپانو خرڅوينه
ببـــرکه لـــوی کـــــفر دی دادی
چـــې قـــومانده له کرملين نه درکوينه

# ويښې جذبې، روغ توپانونه

## دجهادي لنډيو ټولګه

ټولوونکی : عوض الدين «صديقي»

ببـــرکه کـــوردې خـــدای خـــراب کړه
روســـان کـــورونه ړنگـــوي مالونه وړینه
بیـــن الملله نـــــوم دې ورك شـــــه
روس شهیـــدان کړل په گازوافغاني ورونه
بـــې پتـــه ژونـــد مـــې په کارنه دي
دپت په ژوند کې که مرگی وي مـړدې شمه
بیـــادتکبیـــر نـــارې کــــړی پـــــورته !
چې په مسکو کـــې کریملین وریچـــوینه
بیادتکبـــیر نـــارې شـــوې پــــــورته
راته ښکاریږي سره روســـان په ماتې شونه
بې ننـــگه یـــاره ! خـــداي دې مـــړکه
ماته گودرکې جونو راکـــړل پیغـــورونه
ببـــرك دخـــدای دښمـــني وکـــــړه
له لعنتي « لنین » نه کانـــدي طوافـــونه
بـــبرك ! بـــس دی ســـلامـــي شه
که نه غازیان درنه غوړونه پـــرې کـــوینه
بــــې له تقـــدیره اجـــل نـــه شـــته
که نه دښمن خوږیه «اریوب» بل کـړل اورونه
بـــې لــــه احـــله مـــرگـــی نه شـــته
وارخطانه شې که جهــــان وي سره اورونه

بې له تقدیره اجل نشته
وارخطا نشې که جهان وي سره اوروونه
ببرکه ! داگـهته دې بس ده
ژوندی اومرې وطن نه قبلوینه
بیلتون په جگوغرونو راغی
خلك وطن نه بیلوي ژړا راځینه
بیړی دې ډوبه شه بې ننګه !
چې ړنګوې دخویندو-میندوروغ کورونه
بیابه دچاپه کورژړاشي ؟
خدایه ! تیربړی په هواروسي جازونه
بوی به خود زموږ په خواوي
چې دغزامیدان ته تهول راوتي یوونه
ببرك خوتیسېتي ته تیاردی
خوارکی څه وکړي روسان یې نه پریږدینه
بریالیتوب به اخر ستا وي
چې موراخیستي دکوروسپین کفنونه
بارانه ! ورو- وروپه وریږه
په مجاهدوباندې نه شته دالاتونه
بس یه همدې ثمه ژوندي یوو
چې بل بهاربه بیا په گران وطن راځینه

بیاپسرلی په وطن راغی
دشهیدانو وینو وسپړل گلونه
بی ننگه یاره خدای دواخله
بې ننګي ته کړې پیغورماته راکوینه
ببرك که سپي نه وي روزلی
ولې د بل په غلامي فخرکوینه
ببرك په امن ځای کې ناست وې
سپي یې که سل مری ږدې یې څه پروالرینه
ببرك یو غل دې، ملت نه دې
ولې واړه درته سنکاره شي ملتونه ؟
بخارائه ده پښتونخوا ده
چې جینکی یې هم لښکرې ماتوینه

( پ )

په کریملین کې شیطان ناست دی
هره لحظه نیړی فسادته لمسوینه
په زره پوښ کې ئې زړه چوی
چې دایمان زغرې ئې نه ولړی زړونه
پدی دنیا که نازیدل کړې
ددی دنیانه رسولان هم تللی دینه

په وطن پلورو - غدارانو
وايې وطن اوكانې بوتي لعنتونه
په دې پوه نه شوې دخرة سره !
چې ستا «امين» تره كښې څه شول چيرته دينه ؟؟
په خوله اوستر گودې شه خاورې
دوكه كوې خلك په رڼا - سپين ميدانونه
په خپل وطن كې ځان شهيد كړه
چې مسلمانان دربانديې تل فخر وكړينه
په طيارودې مه نازيږه !
مونږه ځانونه په الله سپارلي دينه
په مجاهدوكې تيښتې مه څه
ظالمه ياره په ټوپك دې پيژنمه
په صف دښځوكې ولاړ دې
چې دوطن په دښمن نه كوي بريدونه
په مازيگر مې گروپ تيار كړ
اوس ددښمن مركز ته ځم حمله كومه
پبه تخت دې سره اورونه بل شه
چې ته پاچايې اوروسان كوي حكمونه
پيرۍ - پيرۍ ته به يې سپارم
زه دغازي په څوكۍ ځلي جوړومه
په وچ كمركې مې څوكۍ ده
له گل ، بلبل سره به څه غرض كومه ؟

په سرک شني جنډې ځليږي
پهٔ دين مين ، ټانکوته غيږې ورکوينه
په شهيدانو زيرى وکړه !
چې دجنت حورېې په تمه ناستې دينه
په سپيده چاودلاړشه مرکزته
چې پس له هغه بياروسان بمباردکوينه
په سپيره ډاگ داوړي لمرته
په شنوخيموکې ماشومان چيغې وهينه
په دنيا لويه زلزله ده
په کابل راغلل دسروونو سيلابونه
په کابل داسې جونه مړې شوى
په توروزلفويې ملايه تړلي وونه
په کابل سور شوروى راغى
ماشومان ژاړي جينکۍ مورچوته ځينه
پهٔ جګوغرومې سلام وايه
وړکي شهيدان شول بيابه نه راوړي سروښ
په گران وطن تورې تيارې دې
سپيدې خورې دې داتيارې به رڼاشينه
په ناموس ننگ - په وطن جنگ دى
ترخداى مې جارکړې ننگيالي غزاته ځينه
پاس دبمونو باران جوړدى
مجاهدين ورلاندې هکه غرۍ ځينه

په یـوخـواکـونډې - بـورې ژاړي
بل خـواراځـي دیتـیمانو فـریادونه
پـه کمـونسـتودوکـه مـه شي !
دوي مزدوران دي کـریملین ته یې گتینه
پـه غـوربوکـون په ژبه کونگ شه
په سترگـوړوندشه چې کابُل تباه کوینه
پـه وطـن نـنگ وکـړه شهید شه
تاریخ به ستاپه ننگ نامـوس فخـرکوینه
پـه وطـن نـنگ وکـړه شهید شه
دشهـیدانو مـرتبـې اوچـتې دینه
پـه مـوږ یـې حکـم نه چلیږي
«خلق» او «پرچم» د «روس» مریان دی ورک دې شینه
پـونـنگ که مـرم خوماتې نه کرم
ځله پـرمادپسـبـتانه نـوم یادوینه
پـه چـونې بـیادزې شـروع شـوې
وروره ! جنگیږه مجاهد سنگـرته ځینه
پـریږدې چـې دیـرې وسلې راوړې
دروس بچې هـم په روسي مـرمیومرینه
پـه کـریـلین هـم اخـترنه دی
په کندهار باندې که بل شـول سره اورونه
په مـورچل دوه مجـاهد بنه وي
چې یوزخمي شي بل دتړي پرې پر هارونه

په توره شپه کښې ډزې وشوې
مجاهدين په وروسانو کړې ډزونه
پنځه زامن مې شهيدان شول
ددوی قبروباندې به شمعې بلوومه
پل چرخي په لوی زندان کښې
وږکې بنديان دآزادۍ آرمان کوينه
په هديروکښې رناسبکارې
کونډې قبروپه سرنې شمعې بلوينه
پام که زارې ورته ونه کړې
ببرك جاسوس دی زارۍ کله قبلوينه
پاس دسور لښتوځړوبيه
ستادبيلتون مې په زړه داغ دی آرمانونه
په سترگو روند شی کارمليه
په شوروريانودی کړل وران ودان کورونه
په وطن سرې وينې بهيږي
دير پرې ژړيږي يونيم لوبې پرې کوينه
پرتورو خاورو مې سلام دی
شهيد خوگل دی گل به نه خاورې کوينه (۱۴)
په "سپرۍ" خرتانکونه راغلل
په توپوولې "سروبې" (۱۵) غوندۍ سرونه
په دين وطن به ځان قربان کړم
چې خپل کالی مې راته جوړشي کفنونه

په آسمان ستوري بنه بنکاريږي
په ځمکه بنه دشهيدانو مزارونه
پاڅه ستنګروړسي واخله !
دپاسه راغلل دملحدرژيم جازونه
پيړی ، پيړی ته به يې سپارم
زه دغازی په څوکۍ ځلې جوړه ومه
په سکربيت ماشين يې وله
چې دخلقيانو مورچی دړې وړې کړينه
پاسې په څوکۍ کې دې غرورك شو
ورکيه شهيدشوی که مرمی دې ختمی وینه
په «ګرديز » بيا ټانکونه راغلل
مجاهد دکې ګردنۍ مورچوته ځينه
په خوله به سل مهره راکيږدي
څنګه به غلی کړي دزړونو آوازونه ؟
پلارې دشاه دچګس بازوو
زوی يې ځکوته لکه سپيې لکۍ وهينه
په هربدلون پسې بدلون شته
دلينيزم به دې څوك تضمين کوينه ؟
په ټانك سپاره له پلې تښتي
چې روسی ميندو څه زمري راوړي دينه
په ټپو سانو خدای اختر کړ
سپړ،سپړ روسان دپښتو په دربی مرينه

پرچم مــرگی کــابل تــه راغــه
دروس بچي دانتقام په مــرمۍ مــرینه
په هــره پــوله یــورروس مــړدي
دباد روان قبــرته ځه وړی حاجتــونه
په پاکه خاوره مــې زړه ســوځــي
چې پری توئیږي دخلقي اوروسي ویــنه
پیغلوزلــوهــوملاتــړلــې
دآزادۍ نهــال په وینــو او بــوینه
په قیامت بــه قــیامــت کــړي
چی راښکاره شي روسي پوځ وژلي نجونه
پرون ســیالــۍ وې دمــوږونــو
نن ښکلي نجونه په سیالۍ زندانته ځینه
پښتون به چاته سرټیټ نــه کــړي
که یې ماله شی شنی دری اوسپین سرونه
پلــویې ډك راپــــــسې راوړو
کاشکی یې بیاچیری کارتوس موندلی وینه
پریږدۍ په یوه خــوله دې غــږیږي
دبریژینف سپــي له ویتــنامه تریــنه
پــه لاس کــی تــوره توپك خــوندکا
یاددښمن به اتکــړیوکــې لاســونه

پــرېږدي چې درســته قــــوه راوړي
دبې ناموسو به څه ټانك وي څه توپـونه ؟
پــه بل ســرودنه پـــورته کــېږي
دماشين ګڼ په ســروټال آمــوخته زړونه
پام کـــړه چې واردې خـــــطانشـــي
چې سره ګډ شـــې دتوپـــونـــو آوازونه
په ټينك کې ناست يې اودس مـــات شـــي
چې دتکــبير ناره يې زړه ولړزويـــــنه

۹۰ ( ت )
تره کـــيه څه نخـــرې دې وکـــــړې
جيل ته دې بوتلل ډيـــرېې شماره عالمونه
ته داســــلام په نـــنګ شهـــيدشـــې !
چې مجاهد دې په نامه فـــخرکـــوينه
تـــه په کــــابل کې ځان شهيـــد کـړه
زه به خولګې اوزلــــفې تالــــــره ساتمه
تـــردې پــــه بـــم ويشتلــــې سه يـــم
چـــې له قــبلې به مــخ مسکــوته اړومه
تربـــې کــــفنه مـــرګـــې جـــارشه
په نوم ژوندون چې وی بـيواکه بـې وطنه

# ویښی جذبی ، روغ توپانونه

(دجهادي لنډیو ټولګه )

لومړی ټوک

ټولوونکی : عوض الدین «صدیقی »

تاچې خپل ځان تر وطن ځار کړ
زه به کچکول د ملنګۍ واخلم مینه
تر داکېږي پګړۍ دې ځارشم
دروسي وینې تویوه ګرانه مینه
توره په وینو افغان راغی
ځکه یې توره په سروشونډو پاکومه
توره په لاس ـ توپک په غاړه
راځه چې دواړه دروسانو جنګ ته ځونه
ته خوله ځایه وې سرکوزی
مه تیښتوه دافغانانو جګ سرونه
ترافغاني همت مې ځارکړي
روس ته اوبه دسرکاسه کې ورکوینه
توري ته ژوندکې چې شانه کړي
ملالي نجونې به پیغوردرته کوینه
تاد «لنین» لعین پل ونیو
کارمله! ته ورك شې اوستاملحدان ملونه
توپ دهشکې لري تینکونه
لاره یې نیسه مازیګرقطارراځینه
تاریخ به تل په تا نازیږي
چې مومات کړي دروسي سپي دې غابنونه
تاته حیرانه نن دنیاده
چې دې شړلي دروسیانو ستر پوځونه

ته کــیه ! گـــوردې لــــه اوردک شه
په گران وطن باندې دې بل کړل سره اوروڼ
ته دوطـــن پــه ننـگ شهیــدیــې
زړه مې دی خاورې شي چې تابه هیرومه
ته دتــودی بــړستــنی خــوب کــړه
په ماپراته دي دتانگونو خړگردونه
تاومـــې دزړه لــــه سره خــیژي
چې راپه یاد شـي دروسانو ډیر ظلمونه
ته په سنگـــر کــې ځان شهیــد کــړه
زه به داســتاپه نــامه تل فخــر کومه
تــه پــه اســلام خپل ځان قربان کړه
الله به درکړي په قــیامت کــې جنتونه
ته دمشکـــو پـــه زور نـــازیږه
زه به دخدای (ج) پـــه حمایت باورلرمه
ته هـــم پـــوهـیږې چـــې ماتیږې
دحق په چـیغه دکــودگروطلســمـــونه
( ۱۱ )
تـــراوسني افســـربهـــــتردی
هغه مـورگ چې دطمعی په هوس مرینه
ته دتنخـــواه روپـــــوته خـــانده
. پریږده چې خوردې په مسکو کې گډیږینه
تـــردې عجـــبه به لاڅــــــه وی ؟
دبازیه حاله کې چـیندخ وهــي تړپونه

ته پــه کـابل کې ځـان شهيــد کړه
زه به خپل شال ستاپه زيـارت وغــوړومه

تــه دالله پــه ديـــن ميــن يـــې
ملائيکې به دې کــومك لره راځــينه

تـــه دې غـــزاکـــوه جـــانانه !
زه به مورچلـــې ته ډوډۍ درخـــيژومه

تـــورې تيـــرې کـړې دښمـــنانو
زه بت شکن ميدانځنـگ ته بـــياورځمه

تـوپ لـــه ميـــدانه په کارنه دی
په بدنامۍکې سپي موزيان په تبه مرينه

تل پښـــه زحمـــت پسې راحت وي
چاچې زحمت ليدلي وي راحـت به وړينه

ترغــويگـــــورتوپك دې جارشم
ترلـى تادې توغه زه درپـــسې ځمه

تـــوره له تيـــکی نه بهـــرکـــړه
په دين غزاده ، لوی واړه سنـــگرته ځينه

تـــوره لـــه تيـــکـــی نـــه بهر کړه
افغانستان ته سره روســـان راغلي دينه

تـوره بـــبرکه ! خـــدای دې واخـــله
ستاله شامته هرځای بل دي ســـره اوروته

تـــوره دهغـــوزلـــــوكـارده
چې پلارپه وياړاومور په پت روزلي وينه
تـــردى به ښه همــكاريــې ځــه وي
روسانو پاك كـــړه دښاروڼــو ډيـرانــونه
ټانكـونه ځي الله دې خـــيركـــړي
چـــې به په كـوم كلي اوروته لګـوينه
ټوكــــر - ټــوكرمې مـــورته يوسې !
نه چې زماله مـــرګه پس شكمـــنه شينه
ټـوپك مـــې بيـــاپه اوږه كيــښود
په دين ميــن يـــم دالله رضـــا ګټمه
تـــوپك له تاســـره نه سښـايـــي
چـــې رادى نه وړل دروسانو ســـره سرونه
ټـول مجاهـــد ســـره يـــولاس شول
روســـان به ځـكه وارخطا ماسكوته ځينه
تـــوپكه مـــات مه شـــې چلـــيږه
چې دلانګــې دى زړه ته پينګې وركوينه

ج

جانان مـــې ميرشـــودښـكاريانـــو
په ژمي دوبي دروســيانو ښكاركـــوينه
جانانه ! ګـــوره خـــفه نـــه نـــشي
كه ته شهيد شوې بـيابه زه غـــزاته ځمه

(۲٦)
جنرال «حسین» دی خدای کوروان کړي

چې دابې ننګه زوی یې کورکې لویاونه
جهاد دخدای له لوری فرض دی

ځوانان دخدای امرمنې سرورکیونه
جګړې ته مادرسره بوځه

که شوې زخمې پټې به زه درلګومه
جهاد به هلته مزه وکړي

چې روسان تښتي کارمل ځانته پاتې شینه
جانان به ولې توره نکړي

چې په سنګر کې یې ترڅنګ ولاړه یمه
جانانه څه ! په کابل جنګ دی

په پښتوننګ دې په دښمن وکړه بریدونه
جنت دهغو ځلمو ځای دی

ځوك چې دروس په تیغ شهیدګورته ورځینه
جنرال زاده حرام زاده شو

(۲۵) دپلارعزت دمورپرونی خرڅوینه
جنراله ! زهرباید وخوري

چې داسې پست زوی دې په غیرکې لویاونه
جهاد تنها په توره نشي

(۲۷)
نابغه ګوری دبالښت په ښته مرینه

(۲۴) جانیخـــیل څه شـــوراته وایـــه ؟!
دشفاعت یې دقـــیامـــت پـــه تمـــه یمه
جهادبه ولـــــې په شـــادرومـــــي
چې یې کوونکو سره خدای ملګری شینه
جنـــراله مـیـنه دې سپیـــره شـــه
پداسې څوی چه یې تباه کـړل عالمونه
جـهادبه هلـته مـــزه راکـــړي
چې زیکـویك په طیــــاروچلـومه
جانان مې بیـــاتـهوپك راواخیـــست
ګومان مې کیږي شورویان مـــردارونه
جؤنولنـــګی ترســروتـــاوکـړي
په وطن جنګ دی سره روسیان راغلی دینه
جـــارشـــمه لـــه هغوشهیدانـــو
چې دوطن په ننګ یې ورکړل خپل سرونه

( چ )

چـــی دتکبـیر نعـره شي پـورته
آن په مسکـوکـې روسان لارې ورکـوینه
چـــې امـــنني دپیغمــــــبروي
په خپل جهاد دکفر ولې پـرې کـوینه

چې نه دننګ وی نه دجنګ وي
له کمونستو به څوك څه طمعه لرینه ؟
چې اسکندر یې کرزره چاودې
روسان چینځې هغوغروته خیژوینه
چې کمونست وریاته نه شي
روسی ټینکونه به په چاپیره کوینه ؟
چې دلته دزشي په کابل کې
په اند (۲۹) یرا هلته اسهال ولګوینه
چې بشري احساس یې نه وي
دښکارتازی هم دولس ګامه تهوپ وهینه
چې به پړې سترګې خنوریدلې
نن هغه سرې ځالی خولې رالګوینه
چې وې دهیلوثمر بخښي
له هغو شنو درولتهیری شنه دودونه
چې څوجهان وي ،څوافغان وي
روسه! تیری به دې په کرکه یادوینه
چې ددوستۍ نتیجه داشوه
روسانو !! پای ددښمنۍ به موڅه وینه ؟
چې سرې لښکر کې راخورې شوې
نامردبه اوس هم دبستردپاسه مرینه

چې په توپونو سپاره نشی
دخره سوارلې په میدان هرموذی کوینه
چې شهادت ته غاړه کیږ دي
غازی به ولې چاته سترګې ټیټوینه ؟
چې په ټانکونو کې نینه شی
دروس بچي به بیا افغان نه یادوینه
چې په توپونونه دریږي
پښتني جونه قبلوي داعسې زړونه
چې مره جذبه دی راژوندی کړه
سبامې واردي په تاشکندغزاکومه
چې لیننیزم ته سبه وائی
یادیراحمق دې ، یادچورټمه لرینه
چې هرفرعون ته یوموسی وي
الله پیداکړي کمونیزم ته پښتونه
دالوتکوګنهاردې
په سنګر اوري دګولیو بارانونه
داخوشالي دی شه له مرګه
چې دین ناموس درځځه څي غواړي روبلونه
دمجاهدوګروپ تیارشو
زه یې په خنګ کې دساقي په شانې څمه

(۲۸)

چې جنت گل په لښکرګډشو

خلقيانو جګ کړل دتسليم په دودلاسونه

چې افغانان زلمي بيداروي

دښمن به ځنګه په آسانه خوب کوينه

چې مجاهد دې په اوربه وري

توره ټوپکه ! دماښام لوګی دې شمه

چې دالله اکبر غربې ترغوږشي

دشورويانو تر زړوتورې وينې ځينه

چې بې ګناه افغانان وژني

په سروکفاروبه هم راشي آفتونه

چې افغانان پرې شهيديږي

روسيانومات دې شي دستاسوټوپکونه

چې مجاهد دراکټ غږشي

روسان په ځنګ شي سره خلقيان رامخته کړينه

چې پر مخ ځي پروايې مه کړه

په لارکې ډيروي لوړې ځوکې کړ ليچونه

چې دځوانانو مرګی نه وی

خدايه په درکښې به دې څه کم شوی ونه

چې تورټانکونه يې ايرې کړل

ترغيرتي مجاهد سل ځله تاوشمه

چې په هـــواجــازونه ولــي
دمجاهد تـــوتـهوپك وكـاږې گلـــونه
چـــې مجاهد دې مــړه يې مه کړي
پاتې يې مه کړې دهشـکې اوراکـهتونه
چـــې دراکـــت غـــړونه واوري
دروســې ټينكـــونه لاری ورکـــوينه
چـــې خــدای څه غواړي هغه کيږی
چې روس څه غواړي نه به کيږې نه به شينه
چې پوه يې کړم بيـــداريې نه کـــړم
دفلك څـــرخ به مـــدام دړې وړې وينه
چـــې ســره خانـــدې داپه يادکـړی
به ماشينګنو تحلـيل شـوی ځيګـــرونه
چې دآمـــو ويش دې خـــوش نشـــو
دوينـــو سيل مـــوسره سنه جلاكـــوينه
چې دوطـــــن په مـــينه نه مـــري
داسـي وګـــړي دې رب نه راز ياتـــوينه
چې نامــــوس نه پيـــژني داســـې
ځوانان دې سخ شـي دايـروپه ډيرانـــونه
چې کوريې خپـل واك يې پـــردی وي
داســی بې واکه غلامان دې خـاورې شينه

# بسم الله الرحمن الرحیم

دکتاب نوم : وینې جذبې ، روغ توپانونه
ټولوونکی : عوض الدین « صدیقی »
کمپوزر : محمد دولت
دخپریدو نیټه : د( ۱۳۷۰ )کال د وری میاشت

چې دغازي دراکت غرېشي
دشوروي ټانکونه ټول په ماتې ځینه
چې کابل یادکړم ژړاراشي
چې بیرته گورم مجاهدې خدای لرینه
چې مجاهد چیرته ولاړوي
ملایکې ویښني دجنت زیري گلونه
چې دغازي سیوری ښکاره شي
ببرک له ویرې سفارت ته منډې کړینه
چې دغازی سیوری ښکاره شي
روسان له ویرې په هرچاکوي فیرونه
چې تمیره توره راسره وای
اوکمونستونه نه مې غوڅ کړلی گردنونه
چې مسلمان وي - وطن دوست وي
دخدای دښمن وطن په بل چاخرڅوینه
چې دتکبیر آوازتری خیژي
هغه طرف به کامیابي حاصلوینه
چې څوک مین په پاك اسلام وي
هغه به عمرپه سنگرکې تیروینه
چې شرم نې وخوړننگ یې بائیلود
دکمونیزم لیډري دې غورزوینه

چې مجاهد زلمی شهید شي
دغه یتیم ته به خدای صبر ورکوینه
چې دنفاق ږغ یې ترغوږشي
دمجاهد په زړه کې بل شي سره اورونه
چې دغازي دټوپک غږشي
وشورویانو عسکرلارې ورکوینه
چې دالله په مینه مست وي
بیا دروسانو په مورچو ډزټوپ کوینه
چې دتکبیر غږونه واوري
په پرچمیانو باندې ماتې ګډه شینه
چې په اسلام باندې ننګ نه کا
هغه بدبخته به دخدای رټلی وینه
چې په وطن باندې ننګ نه کا
هغه بې پته دی پیغور دخلکو ورینه

( ح )

«حکیمه» خدایږوکه مې هیرشي (۱۷)
(۱۹) تاتارومارکړل دروسانوقطارونه
«حقاني» بسیاسنګرته لاړو
ایمان په زوربه دښمنان له منځه وړینه

( خ )

خدایه همداغړمې ترغــــوږکــړې
چې شوروبان په تیښــته لاړل له وطــنه
خلقه کوربې په مــــرگ وران کـــړې
چې (۲۲) هوراناري وهــي لاس پرکــوینه
خــورچې دورورپه مـــرگ خبـــرېږي
زړونه رپیږی سترگې اوښکې تویــــینه
خوشحالـــي وکــــړی ـــ عالمــه
چې وروسیان یې بندیوان راوستي دیــنه
خـــدایه وطـــن راتــــه آزادکــــړې
چې یواربیاله خپل نغــری نه راتاوشــوته
...ې ندې په لاس دمسلـــمان کــړه
چې شنی جــنډې (۲) بیالـــوړی وویــنمه
خدایه کافـــر له بیـــخه ورك کـــړې
چې مسلمان په خپل وطن کــې کرارشینه
خاونده هلته مـــــې شهـــید کــړې
چې مې دسر ی زړه پوره شي ارمانـــونه
خدایه هــــغه ساعـــت به کـــوم وي
چې په تورخم کــې کډې وړاندې وروسته شینه

خاونده دا به ستا رضا وه
چې له وطن څخه سرتوره ووتمه

خوله دراکړې دمچیدوده
چې په روسي ټینکواورونه لګونه

خدایه ! نرۍ - نرۍ باران کړې
چې مجاهد غزاته ځي څنهې څنډینه

خدایه ! داپورۍ غرسورې کړې
چې ترې راووځی مجاهد ببر سرونه

خدایه ورړوکی ووړکی ستر کړې
چې دروسي ولی له بیخه وباسینه

خولګی به هغه چاته ورکړم
چې دروسي ټانکونو راوړي راپوررونه

خدای به یې ژرترژره ورك کړي
روسانو واخیستل دبوروآزارونه

خدای مې دې ذرولي وطنه !
داځه ژوند ون دې چې بې تاږدم قدمونه

خاونده داسوال مې قبول کړه !
په مجاهدوباندې وکړه رحمتونه

خدایه روسانوکې اوربل کړې !
چې په خپل منځ کې سره پرې کړې خپل سرونه

خاونده ښه حال دې راولېږد!؟
روسان راغلي په خرقې[۲۳] کړی گوزارونه
خدایه وطن مې په زړه اوري !
ځکه مې اوښکې په سپین مخ څڅې وهینه
خیردی که لوړبرجونه وران شي
خدای (ج) دې دننگ نیغې شملې نه ورانوینه
خاونده خدایه! ښیروریښ کړې
په گران وطن یې غرغرې منلې دینه
خوشالي تهوله شهید یووړه
په ورین تندي دالله لوري ته ورځینه
خدایه ! هغه به کوم ساعت وي
چې دکابل په بیرغ وشیندم گلونه
خپلو مورچوکې راایساردي
غازیان ترې تاودي دښمن سرتندی وهینه
خوله مې خنداته نه جوړیږي
دوطن غم په مخ ښیرې راکوینه
خاوره که زمادپاکستان ده
خیردي مرستې له کابل ته به درځمه
خاونده! بنیادی مازیگرکړ
مجاهد ډگې گردنې مورچل ته ځینه

خــــاونده بل معــاون مـــونـــشته
ستاپه امداد به ماتووروســــي پوځـــونه
خيـــمه دې لـــــروشــړولــــه
افغانه ! تيټ دې نه شوه لوړ- لوړهمتونه
خاونــده سل ځلــه ژونـــدراکـــړې
چې داســـلام په‌مینه سل ځــله مړشـــمه
خوينـــدورانجـــه راځــخه واخلـــى
يارمې شهيدشوسترگې چاته تورې کـړمه
خـــدايه دنـــيا پـــه زلـــزله کـــړې
چې بنائيسته يار جنازه خاوروته ځيـــنه
خاونده٬ خدايه خيروړپيښ کـــړى
نن مجاهد بيادتعرض په لـــورى ځـــينه
خداى چې په چاباندى عاشق شي
يايې شهيد يامـجاهد دسنگـــرکـــړينه
خداى(ج) به دخپل بنده ملاتړشي
که روس دخپلـــو بندگانـــو ملاتـــړينه
خـــداى به مې دې ته نه اړباسي
چې دميرويس(١١) اروابه گـــورکې لـــړزومه
خـــرد آخـــوړبه پرووړمست وي
انسان په پت اوبه عـزت کې ژوندکـــوينه

## ( ځ )

ځوك شو تر خپلو كورولاندي

دچاخيمې په پيښور ولاړې ديند
ځوكابل رنګ په وينو نه كړم

راتهول بد نه كړم دبيزغ سره پلووند
ځوك په جيلو كې شهيدان شول

دچاپه وينوسمد غرشول سرد ګلوند
ځنكد بياځان مسلمان بولي

چې اولادوند يې د روس تعليم كويند
ځوك په وطن ټوټې ټوټې شول

ځوك دشهيد يه وينوكړي تجارتونه
ځوكې كې دود تربروند خوندكړي

چې يوزخمې شي بل پټې په لګويند
ځوك به يد چاديوې كړيبلې

مشعلستان كړې خدايه نوي زيارتونه
ځوك دكارګر يد نامه غولخوري

(٢٠)

ځوك پد مسكو كې پد ودكاغسل كوينه
ځوك بهد زخمي ځوك بد شهيدوي

د روس جهازونو پرى بل كړي سره اوروند
ځوك چې شهيد شو پراونشتد

مدام كوي مسلمانان پد دين جنګونه

( ځ )

ځاردافغان دويني ځار شم
دويني هرځاځكي افغان وزيراوند
ځوانان بهر ملكوته ولاړل
زده په مورچه كې يك تنهاشپې تيرومه
ځلا دتورو دبريښنا دذ
د روس تورتم به په جهادلد منځد ځينه
ځوان دزورد په مورچوكې ناست دي
تويك په لاس دي سره روسان مردازوينه
ځوانان وتلي دي سنگرته
په سرو روسانو قيامتونه جوړوينه
ځما ءشهيدد ځوانه وورد
د ارمانونه به دې جوړ كړم كتابونه
ځان په اسلام تهوتهې تهوتې كړه
هرد تهوتهد به د الله ناريوهينه
ځان دحق دلارې جار كړه
ځكه پرې وياړی دوطن ملالې نجونه
ځان دلد خيلې مينی جاركړه
اوس د بړستنې مركی شرم دی مینه
ځان ته به ځنگه انسان وايې؟
هغه افغان چې غلامي دبل كوينه

( ٩ )

دمجاهد تـــوپك ناري كـړي
لږمي صفا كـړي چي روسان مـردارومه
دداشكي هــاوان په څـنگ كــي
دپس لگــدراكټ به گـرنوپ تيارومه
دنيادي خــواره شــوه دنــياكــي
دايم عـذاب درته كــوي انتــظارونه
دشــــوروی ددولت مــــشر
دبــي آزاروآزاروړي مــرداريه شــينه
دتـره كـــي انجـام يي څه شـــو
چي اوس دابل طرفداري دروس كـوينه
دنتــكي لال مــي خيراتـــي دی
كه مي جانان دغـزابيا راشي مــينه
دآزادی ژونـــدونـــه راشـــه !
په اوسني ژوندون كــي ډير وكــړيدمه
دشهـــيد غســـل روانـــه دی.
رنگين گريوان به دالله حضـورته ځينه
دشهيــــــدانو گــهتي دوه دي
يوبي جنــــت بل دالله ديداركــوينه
دمجـــاهد ولـــوړمـــــقام دی
دخدای په مينه باندي سرقــربانــوينه

دمجاهد لالي دپاره

(۳۱)

په نيمه شپه کې ترصدورته کومه
دغزنوي په قلم راغلل

چې ايمانداروي دوطن مينه لرينه
دشهيد وينې هدرنه ځي

دسره روسي په کوربه جوړکړي سيلاوونه
دشهيد وينوکې اثردی

ځکه روسان په هرميدان کې ماتې خورينه
داغارې غرونه دريابونه

واړه مورچلي دي روسان په بلاخورينه
دغه مې مرسته ده غازيانو

چې ستې پرننگ باندې ټپې نن جوړومه
دغه وطن دمسلمان دی

داملحدان به ځنې ځي خوړندسرونه
دپاك الله پاكه رسوله !

په پاكه لاره به ستااخلوقدمونه
دکندهار ترخاورجارشم

چې پښتني پېغلې شالونه پرې سيزينه
دغه معطرنن فضاده ؟

که دشهيد دوينويوی دمشك راځينه

# اهدأ

خپلو گرانو ورونو محترم علم خان اولعل مرجان ته
يې ډالۍ کوم چې شپه او ورځ يې په ځان يوه کړه
لاسونه يې تناکې کړل ، ستونزې وګاللي خو زه يې
دټولو ستونزو سره سره دزده کړې خواته وهڅولم .

عوض الدين «صديقي»
کُرمه ايجنسي - بګن کمپ
( ۱۳۷۰هـ ش کال دورې مياشت )

داجنازه دکوم زلمي ده ؟
چې دآسمان وریاندې اورې سپین گلونه
داجنازه زما دورورده
زه بې بدل دسرورو شیانونه اخلمه
دامې قسم دي مومن وروره !
زه دروسانونه به اخلم حسابونه
دغازی آباد لویو ځنګلوکې
روسي نارې کړې مجاهد ویشتلی یمه
دکابل کاڼي - بوټې ژاړي
چې باندې ګرځي دوحشي دښمن ټانکونه
دپکتیا غرونه لوله په شول
ددین دښمن پرې داوړمې غورځوینه
دببرك بل څه ارمان نه و
چې شاه شجاع نه زیات مشهورپه جهان شینه
دمجاهد ترقدم جارشم
په هرقدم باندې یې اورې رحمتونه
دمجاهد وجبهې لاړې
خلك خوشال دي چې روسیان له منځه ځینه
داسلام شین بیرغ رپیږي
ګومان مې کیږي مجاهد سنګرله ځینه

دمجاهدودي خـدای مـل شـــي
دوي دالله په میـــنه ځان قـــربانـــوینه
دغــه غـــازیان دخــــداي دپـــاره
په توروغروکي ورځي شپې سباکــوینه
دسپین جومات ترمـــخي جـــنگ و
(۳۲) تاج گل خان وخوت دخلقیانو په ټانکــونه
دسکنــدرچـــي زړه تـــري شيـــن و
په هغو غروکي نن روســـان پــه ژړادینه
دپکتـــیا سنکـــلي ځنـــگلـونه
نن پکي بل دی سرورسانو ســره اورونه
دانجـــــاد بـــیرغ کـــړئ پـــورته !
چي دروسانو په پوځ کلك شي گـــوزارونه
دمجاهــدترتـــوپك جــــارشـــم
(۳۳) چي خپل توپك دټینك په لـــوري ډزوینه
دسیدجان خیـــالـــي ژونـــدونه !
په کارنامویي کلی -کورفخـــرکـــوینه
دشهیـــدانـــو ډلــــــي لاړي
دجنت حـــوري سلامـــي ولاړي دینه
دهغه چــابه مــــرکــــی نــــه وي
چي داسلام په نامــــه سرقـــربانـــوینه

دسپي کارمل له سپيره مخه
ځوانان شومړه ياشوخواره په وطنونه
دمجاهدله سترګوجارشم
دروس په زړه کې يې برچې منډلې دينه
دسپينې خولې انعام به ورکړم
که شورويان څوك لاس تړلي راولينه
دڅرخي پله زندانه ! وران شې
وطن مين ځني ډيرتاخوړلي دينه
دايمان زورنه دى نوښه دى
چې دروس تورټانکونه سرې لمبې وهينه
دين اوناموس ګمتي جنګيږي
نن افغانانو چې راخيستي ټوپکونه
دميړني غازي له ويرې
روسان له ټانك نه نه راباسي خپل سرونه
دجهاد لاره قرآني ده
څه سنه ځواني ده چې دچاپه برخه شينه
دمجاهد په پاکه توره
الله اکبر دکفر جرړې پرې کوينه
داتحاد بيرغ رپيږي
ځوانان توليږي اسلامي جهاد ته ځينه

دآزادۍ په ناوې جنگ دی

زلمي په مینه کې سرونه ورکوینه (۳۴)
دادسپوږمۍ «شهید په توره»

کابل رڼا شو کارملیان په ماتې ځینه (۳۵)
دخلیل الرحمن «دټانگ شړنګاشوه

په پرچمیانو باندی بل شول سره اورونه
دمجاهدومل شي خدایه

دودی خوري وچه سرپه تیره لګوینه
دشهیدانوبرکت دی

روسان پرځپل ټولي بمونه غورځوینه
دافغانانوله غیرته

روسانو واستول دسولې پیغامونه
داسلام فخر شوې افغانه

چې سرولښکروته دې ورکړل گزارونه
دوروله غمه لیوني شوم

عالمه مه مې گرموې چې هرڅه کړمه
داشهادت مومبارك شه

چې په وطن مو روسان راغلي دینه
دماهیرېه سردروکښې

مجاهد گرځي پروروسان مړدارونه

دجیلـخاني بنـــدیان به راشـــــي
دتوروخـاوروشهـــیدان کـله راځـینه
دجیلـخاني کـړلـــې تـــه راشـــه
دیدن درواخله ما پانـسي ته ځیـژوینه
دې پردیسي مـې زړګـــي شیـــن کړ
خدایه په لوړوغرومي بیاکړې نصـیبونه
دغــازي پـــــل دمچیــــــدودې
ټې ـلي په سرویـــړانو کـــړي لتـهارونه
دغـــه دشـپې خـتلې لـــمردې
که دشهیدپه قبــربل دې مـــثالـونه
دبت شکـــــن محمــــود اولادیم
په جهان یادیم روسه څه کوی خـــیالـونه
دملالـــــې نه کـــمه نـــه یـــم
زه دمیوند په جـــاده ځان قــربانومه
دپیســـڼـــوربه میـــرووړکـــــه
ترګل نازکه وروه خـــداي به دې ساتـینه
دغره په ســـــرلاتیـــن بلـــیږي
ګومان مې کیږي مجاهد ترون کـــوینه
ددوزخ اوربـــه ورتـــه ســــوړوی
چاچې تامبـــودپردیســـې لیدلي وینه

دشهید وینه سیلابي ده
هره ذره يې توپانونه جوړوینه
دغاټول ګله ! باران څه کړي ؟
روسانوجوړدي دسروو ینو بارانونه
دابخارانه ده ببرکه
چې ستاروسان په غېږتې خیټې ګرزوینه
دروس په ټینک مې پروانشته
زه چې نبایسته راکټې په ټخنګ کې ګرزند
دتره مې داسې شهادت ؤ
چې دسرووینویې دعطروبوی راتونه
دزړه ټوټه مې خداي ته ورکړه
خفه پرې نه یم امانت دهغه وونه
ددنګوغروځوانان خبرکړي !
چې ښاري لجونه په وطن سرورکوینه
دروسي سرپه توره غوڅ کړي
نورنوګناه ده چې په نازکوی خوبونه
دمجاهدودی خدای مل شي
په سریې راغلې طیارې لاندې ټینکونه
داوړي لمنه دغره باده
چې وچې نکړې دشهیدنې پیغله وینه

دشهیدانو نفری کوم دي ؟
دننگ میدان دی چې زلمي یې تودوینه
دظالمانو زوراوبه شه
چې به افغان باندې کوي رنګ رنګ ظلمونه
دظلم جام به مونسکورشي
په افغانانو باندې مه کوی ظلمونه
دحق په لارمودې سرلاړشي
موږبه باطل ته چیرې نه ځو نه کړوسرونه
دخپلواکۍ حق موخپل حق دی
داورپه زوربه غلام نه شي اولسونه
دخدای قرآن زمونږ بس دی
روسیه ! نه منو ستانوي رواجونه
دجدې تورتیاره ماښامه
څنګه دی تیت کړل افغانان په وطنونه
دکمونیزم بدشامته !
افغانستان ته دې راپیش کړل دیرغمونه
دامې دپت ښکاره نښان دی
زه ننګیالی په وطن ځان قربانومه
دستارپه سرزماکفن دی
ځکه غیرت باندې زه بیاکابل ګټمه

دآزادۍ په ځنګدن کې

یمه خوشحال غلامي کلسه قبلومه
دخدای په مینه باندې مسته !

په روسي شوبلوباندې بل کړه سره اورونه
دآسمان ستوري دې شاهد دي

په تیوله شپه ستادمیړانې سیل کوینه
دیرهارژلي زړه درمانه !

مجاهد ځوانه ! ستاغورزنګ مزه کوینه
دمجاهد دتورې شرنګ شو

په سروپوځونه سالنډي ولګیدنه
دمجاهدترتورې ځارشم

له سروروسانونه یې غوځ کړل ورمیږونه
دچمچه مست،،سرکبنه سینده (۳۷)

اوس دي په غاړوسره روسان چکروهینه
دروس دې مخه نه شي چیرته

وړې ملغ دي کروندې تباه کوینه
دشهید روح په نورکې لامبي

ساده ژوندي یې په ګورشمې بلوینه
دافسانورسته نخه شوې !؟

وایې چې تخت ته یې روسان ختلي دینه

دروس وحشي لښکرې راغلې
بیادژوره په مورچوېمې غورځوینه
دخوست چونۍ کې اوربلیږې
دمجاهدراکټ اوروته بلوینه
دحقاني ترمشری جارشم
په قوماندې یې لوی واړه جهادته ځینه
دحقاني دتورې شرنګ دی
په روسي شوېلوباندې بل دي سره اورونه
دافغانانو زوردې ولید
چې په تش لاس دې زغلوي ترکرملینه
ددنیا سترطاقت روسان دي
حیراني داده مجاهدیې زغلوینه
دجهاد تیرشول اووه کاله
خالقه خدایه اتفاق څوک نه کوینه
دافغانانوله غیرته
روسانووکړل په هرځای کښې فریادونه
دادشهید دوینوی دي
اوکه چاعطرپه دنیا شیندلي دینه
دچابه کورکلی یادیږي
زمایادیږي دغزاسپیره ګردونه

دغروســـــروکـــې غلــبلې شـــوې
مجاهدین دسروروسیانو مـــخ ته خُینه
دمـدینـــــې ســـــردارخـــبرکـــړې !
چې په افغان باندې روسّان ظلم کـــوینه
دامتـــــیانولـــــوې غمخــــــواره!
لاسونه پورته په دعـــا کـــړه گـــدایه
دداشـــکـــې میخـــونه تیـــنگ کـــړه
سباوعده ده مجـــاهد مرکـــز ته خُـینه
دپس لگـــــدگـــولـــې راواخـــله
چې ددښمن له مورچو پورته کـــړوگردونه
دهاوانچي پـــه لاس بـــــرکت شـــه
دښمنان کدې باروې مـورچې پـــریـــږدینه
دتــــــوغنــــــدي له برکــــته
دکریملین واکـــداران اوښکـــې تویـــوینه
دوطـــن فـــروش کارمــــــل له لاســـه
۲۴، روسان کورونه ورانـــوي مالـــونه وړینه
دجانیـخیل شهیـــد پـــه یادکـــــې
دزړه خوناب به په کاغـــذکې ولیـکمه
دشهـــیدانـــــوروی دی خـــدایه !
راته آزادکـــړې داسلام تـهـول وطنـــونه

# سریزه

« جیم دارمستتر » د پښتو نخوا دشعر هار او بهار اثر په سریزی کې لیکی :

« پښتانه خپرونی نه لری ولسی سندری یې دور ځپانو ځای نیسی او دسیاسی ژوند ټولی پیښی یې دخلکو سندرو ته لار مومی »

زموږ دټولنی تاریخی مطالعه هم دا ښیی چې واقعاً هم ولسی ادبیات دی چې زموږ دټولنی دردونه ، کړاونه ، ویاړونه اوستونزی یې په ریښتنی توګه خوندی کړی ولسی شعر دی چې زموږ دټولنی دقهرمانانو ، قهرمانی او زموږ دکورنیو وطن پلورونکو خیانتونه یې کټ مټ منعکس کړی خو داچې موږ نه یو توانیدلی خپل ولسی ادبیات چې زموږ دتاریخ ژوندی بیلګه اوسند دی خوندی کړو هغه بدبختی اوخلا ده چې باید اعتراف پری وشی .

خبره راڅخه اوږدیږی غوارم دلته د پښتو (د ولسی) ادبیاتو دیوی څانګی

دشهادت جام خـــــودې نـــــوش کړ
شهیده ! وایه دعقبا ښکلــــي حالـــونه
دسروغــــــاتولـــوپسرلـــــــــي دی
که سرې جندې دشهیـدانـــوپه قـــبرونه
دپـــاسته تخت بچـــــــونی نه یم
ځـــان ته څوکې توره سمځ کـــې جوړومه
دهـــوسونـــــوپـــسرلـــــــیه !
هغوته ورشه چې یې زړه مستي کـــوینه
داســـــلامي جذبـــــي طاقـــــت دی
په دښمنانونو باندې یې وارول تینکــــونه
ددښمـــــــــن غـــــــــته اراده وه
خوافغانانو ورله وران کـړل ټول پلانـــونه
داسلامـــي جـــــذبې طاقــــت دي
دښمن به سرپه خپله کــرښې له راوړینه
دښمن یې داســـې پـــه پـه ژړاکـــړو
چې تـــرپیړوپوري به اوښکې پاکوینه
دمجاهـــــدومـــــل شـــې خـــدایه !
په سرېې میګې ګـرځوي لاندې تینکونه
دلـــوړوغـــــروشـــــمالـــه راوړه !
ها، دزرګـــــونونبدیـــوانوسلامـــونه

دســـــره نـــظام لــــه بدشامــــــته

نن موهرکوربانـدې راغلــې دي ویــرونه
دافغان کهول دې خـدای لادروندکــړي

ننګه یې وکړل په سرډیوکللك ګـوزارونه
داخرپ اوترپ یې تـهـول غـــیرت دي

افغان دي وي که هودې نامـــوس ګټینه
دبــادشــاهــــی دوران دې واوره

داسنګلې جونه په ژړاکرمې ته ځیــــنه
ددوزخ کندې به یــې ځــای شــي

بې له اسلامه چې بل دین غـوره کــوینه
دانــقلاب ډیــــوې بلــــیزي

له هرسنـګره دتکبــیر آوازراځـــینه
دشهـــیدانـــوروی دي خـــدایه !

راته آزادکـــړې داسلام تـهـول وطنونه
دپاسته تخـــت بچـــونې نه یـــم

ځان ته مورچل به پیره غره کې جـوړومه
دحق په لارکـــې تـــاوان نشـــته

په مرګ شهیدپه ژوند غازي بلــلی شـینه
دجـــهادي سنــګرپه خــواکـــې

دادبې سنګرراکش کـــړې تنابــــونه

دفتحی وخت رانژدي شوي
ځکه دښمن سیاسي حل چغی وهینه
دبي ننگی پلوته ناسته
ځنگه دي هیرډکوچی خولی، سوی کورونه
دکنگل غوالوشي ماشومه
که روسان خره دي چې دتالپاره مرینه ؟

(۲۹)

دورکښتون واړه هم پوه‌دي
چې دمسکوحلقه بگوش یې مختورنه
د.. پرچمیانو لاري څاري
دباغ وحش خالي شوي قفسونه
دجنرالی په ږودی لوي شوي
خودفروشي درته چاوسوده ډارنه ؟!
دسفارت تشناب کې ناسته
څوك به دي واوری دکموددسرحکمونه ؟!
دخدا ي (ج) لعنت په هغوپستو
چې خداي (ج) هیروي اولینن ورننگوینه
دکمونیزم پایي به څه شي ؟
په هربدلون کي چې بدلون وده کوینه
دکارگرې نهضت لپاره
طبق وهلي غوايې ځان قربانوینه

دبریښنف مس هـم سبکاره شـو
له عقله پل سړي په سپی خـوابـدوینه
دکاریگـر پـه لاس کـې لـوردې
لیننه ! گوره پرې کـوي ذچاسـرونه ؟
دسرولسټکروپـدل یـې مـات کـړ
دسپینو غـروتړی دی تل سـرلوړې وینه
دسفـارت پـه پنـجروکـې
لکه بندې تـوتې ببرك نـارې وهینه
دسـفارت په زیـرخانـوکـې
ببرك په ځان دشاه شجاع گـومان کـوینه
دانگـریـزې استـعمارکـونده
سره استعمار ته دیارۍ سـترگك وهینه
دنوې نسل دې خـدای (ج) مـل شـې
چې تربیه یې دمسکـورندۍ کـوینه
دبـریښنـیف دزړه لـپاره
اناهیتاپه میـړه پوزه پاکـوینه
دزوریاران چـې زوریـې خـیژې
لکه دسـیل اوبه په سلـولاروځـینه
دپرچمۍ چرگـې دستـوردی
کرت ، کرت یې دلته هگۍ هلته ا چوینه

دبـــې ګنـــاه روسانـــو ويـــنې
ربه توفان کړې چې روسي فرعونان وړينه
دنابغـــه پـــه ګـــوراوربل کـــړې
په درست وطن يې لګولـي سـغره اوورونه
دنابغـــه قبـــر راګـــورې
چې هرساعت پخپله خوښه پرې تـوکمه
دســــياسي ژونـــد مطلـــب دادې
چې سم دسم سره په سمـه لاره ځـينه
دسپوپه خوښه چې سپې سپې خـــوري
تردې دخوندکيسه به بله چـيرته ويـنه ؟
دغلـوبلاپـــه هـــغه چـــاشـه
چې دجهاد په نـامه لـــويه لاروهيـنه
دين يې دســــرله داره پـــريښـود
هغه پوچ سراوس ترنوتهونو جـــاروينه
دغه تنخواه چـــې ته يـــې اخلـــې
ستادپت بيه ده له بل ځـــايه راځـــينه
دبـــې نامــــوسو ګنبسه داده
دغلامۍ تيکه يې پاس په خولـۍ ويـــنه
دسولـې پـــوځ مـــې دادې ولــــيد
په بې دفاع اولـــس بمـــونه اورويـــنه

ددوست لښکرې. چې راغلې
ددوی له لطفه ژوند په سمڅ کې تیرومه
دشهید روح کړی شنه کوتره
چې په جنت کې دمستی غبرګ برو هینه
دسپین پوړنی ترتوغ لاندې
فرشتې راغلې روس ته ماتې ورکوینه
دپیغلوهر څاڅکی دوینو
داولسونو سرنوشت معلومه وینه
دآسمان ستوری شوې ناهیدې!
دننګ بیرغ به داوس څوک په اوږو وړینه ؟
دخدای دعرش دقندیل شمې !
په تادې تل رتل وي سرلوړي اوچت غرونه
دننګیالی شهیدې قبره
دننګ سمبول شې چې عالم درته راځینه
دشهیدانو په سرونو
دعیش ماڼۍ خوکافرهم نه جوړوینه
دادلکونو زلمو وینه
ربه تازه کړې چې ژوندي کړې مړاوي زړونه
دشهادت وزری ـ راکړی
چې پاس په عرش دآزادی غومبرو همه

دشهیدانو وینې وروړه
چې سمندر په څپوراشي ابا سینه
دکمزر سبینه ګډه نه کړي
دروس په وینو دشهید پسېتانه وینه
دهمت توري پخه مي شي
اوس لا په ډیرواوړوباردي پوچ سرونه
داوړي لمره ، دغره باده
چې وچې نکړې دشهیدې پیغله وینه
دجنګ شهیده بختوریي
دبند شهید دمایوسۍ په زندۍمرینه
دشهید وینې پرخې نه دي
هره قطره یې توفانونه ویسبه وینه
دشهیدانو نفري کوم دي ؟
دننګ میدان دې ، چې زلمي یې تودوینه
دکمونیزم نوم چې اخلي
یالوې جانې وي ، یاله عقله لرې وینه
دیوال که رنګ شي بیابه جوړشي
څنګه به جوړشي دزخمي زړه پرهارونه ؟
دیرغلګروبدانجامه
چې ماشومان دې په سرولوبې کوینه

دکمونستو دا منطق دی

چې قوت حق دی ، حق ته هرڅه رواوینه
دلینن خپلوته وصیت دی

قدرت حاصل کړې که په هره توگه وینه
د «سی .آی ای » جاسوس یې بولي

په کمونستوکې چې خوله ژبه لرینه
دتېپوسانوکه لښکروي

دلوړوغروکجیریې څه پروا لرینه؟
دبل ترسیوري لاندې ژونده

ترتابه ښه وي چې پراته وي په چاغرونه
دزړه برجونه ورته تینگ کړي

پریږدې چې سرې لښکرې درستی راولینه
دغوړپ شرابومستی څه وی

چې مستدې نه کړي مستوونکي غاړې غرونه
دتېتوسترگوژونده ورك شي

ولې پخپل نامه ډك نه کړو تاریخونه
دهندوکش دزمرو کاردې

چې په خالي لاس دټینکونومخ ته ځینه
دهرې لوښې ږغ راخیژي

پام چې پرسرمی یرغلگرنه کیږدی پلونه

دوطن کانې بوټي وائي
زلموراپاڅې چې روسان راغلي دينه
ددښمن وارو پارخطادی
اوس په ګازونوباندي وژني زمري ځونه
دستيج خلقي زمرې مې وليد
ترچادرۍ يې راوتلي وويريتونه
(۴۱)
دباختر خاوره تمبولې ده
روسانو پام ، چې جهانونه غرقوينه
دوروګيدوبندګانو
روسانو ، ګيدړ په مرمې دړه کوينه
دهرې وينې هره پانه
يوه شب نامه ده چې ځوانان ورپاروينه
دماشين ګنو په باران کې
دشاه ځلمودهمت بوټې ګل کوينه
دمجبوروف په سپينوغوسبو
دغروزمري وړی ګيدړې چاغوينه
دروس (۱) يوه مرسته رښتيا ده
چې حق پرست اوزرپرست معلوموينه
ددغې سپکې ګرم به خوك وی
چې کوته سپي خوري دروسي جنرال هډونه

داهسي زوې چيرى لــوې مــــــشه
چې دوطن په لارکې ســرنه ورکــــوينه
دزړونــوزورهلـــــته ســنـــکاريـــږی
چې سره ولـــې ســربداله راکــښتونه
دماشيـــن گنـــو اوازيـــــويـــــه
چې راژوندي کـــړی دفـاوچـنگوژلـــــــې زړونه
دسرواميل مـــې درنه جـــارشـــه
ياره پوره کـــړه دکـــارتـــوســوکـــتارونه
دخولواوسترگــوښايـــست ډيـــردې
ښښتنی جارشم چې په زړه ښايسته وينه
دماشين گڼ گولــــی پــه زړه کـــې
دخدای(ج) حضورته دايمان سنـــدوروړمه
ددوران ســـــازورازافـــشاشــــو
منطق يې تانك دې اوبرهان يې هــم بمونه
دکمونـــيزم ليــــدرتــــوپ دې
چې سپين به توراوتوربه سپين درته ښيــنه
دکريملين دمــــانـــی غـــونـــډې
دکاريگــر په پرهرمـــالگـــی دوړوينه
دبريژينيف لکه چـــې تـــورشــــو ،۲۲،
چې په کابل هم دپراگ گـــومان کوينه

(لنډيو) په باب لیږ څه ووایم ، لنډۍ شعر دی اودشعر په صنف کی هم بيا هغه شعر چی زر ذهن نشين کيږی اولوستونکی يا اوريدونکی زر متاثر کوی ، دنامه په باب يی هم وايی ځکه يی لنډی بولی چی لنډی دمارانو له جملی څخه يو لنډ مار دی چی زهر يی ډير زر تاثير کوی .

لنډی دتيکی ، مسری ، ټپه ، اواز ، بدله اوسندری په نامه هم يادوی که په يوه ځای کی يی لنډی په نامه پيژنی په بل ځای کی بياد ټپه په نامه يادوی اوچی بيا کله په سروکو اونيمکيو کی راشی نو تيکی ورته وايی .

لنډی زموږ دکليو ، بانډو اوغرونو زيږنده ده لومړی مصرع يی (۹) ، سيلابه اودوهمه مصرع يی (۱۳) سيلابه وی ، دلنډی دزيږيدو دنيتی په باب مختلف روايات شته ، په دی هکله «دپښتو دشفاهی ادبياتو دشکل اومضمون اثر» ليکوال له دپوهاند عبدالحی حبيبی روايت رااخلی چی اکتفا پری کوو «دلنډيو دپيدايښت نيټه په سمه توگه نه ده څرگنده ، دځينو څيړونکو په عقيده دالاندی لنډی ديوی تاريخی پيښی په باره کی موږ ته معلومات راکوی :

چی دخالو لښکری راغلی

زه به گومل ته دخپل ياردیدن ته ځمه

دغه لنډی مرحوم پوهاند عبدالحی حبيبی له تاريخی پيښو سره

دلـــينـــــزم لــه شــامتــه
جهان ورانيږي ، سرېتوب له مينـــځېنه
دمالتي پوست خوخره هـــم نه خـــوري
ورېږ روسان يې له ډېرانه تښتولـــوينه
دسنگـــــرونوغـــيرته راشـــــه !
په ماوريږي توغـــندي سكـــړاکېږتونه
دسنگريـاربه هغـه يـــارکـــــرم
چې په ټټرباندي يې وخـــوړل زخمـــونه
داځـــه پښتـــواوځه غـــــيرت دي
سنگرته نه ځي په خپل کورکوي خوبونه
دوطـــن پيغـــلی پـــه ژړاوی
ډيروزلمـوبانـــدی چليږي راکـــېتونه
دشهيدانـــوکـــاروان راغــــــي
په تن يې راوړل دسنگرځـــخه زخمـــونه
دوطن پيـــغلی پـــه خـــنداشـــوی
په شهـــيدانو دالله(ج) وي رحمتـــونه
دوطـــن پيغـــلی په خنـــداشـــوی
په شهيدانوافتخارکړي دښـتی غـــرونه
دامـــومســـكن ،دامـــووطـــن ، دي
ځوانان هميش په خپل وطن کوي ننگـــونه

دسپـــواوبدوپــــښوه نشـــــــته

ښه به دبدستنی بدبه راوړي راحتــــونه
داکه وطن مـــې ړنــګ ویجـــاړدی

په سرورروسانومې هم مات کړۀ ډیرسرونه
داکه زه مـــرم خـــوشهـــید یـــم

برهٔشوه دوې ته چې پرې ډګ شـــول دوزخـــونه
دداسي لاړی پـه تـــګ خـــوښ یـــم

په خنکـــدن یــې چې معاف شي ګناهونه
دخدای (ج) په درکـــې پـــه ژړادي

ګوره «سید خان » دداسي لاړی کـــړيسوالـــونه
دتن جامې یـــې تکـــی ســـری دي

یاریې خـــوړلي پرتېـــرباندی زخمـــونه
دشهید زخـــــم رابنکـــاره کـــړې

چې ئې په سروینو شین شـــال ورنګـــونه
دخدای په امــــان شهــــیده ولاړې

دپښتون لوریم ستاپه پـــت به ناسـته یمه
دوطن خـــــاوره پــــرتاویـــاړي

په مقدسه خـــاوره تاوکـــړل ننګـــونه
دغـــم اودردوختـــــونه راغـــلل

په ښکلو خلکونن رپیږي بـــــیرغـــونه

دګل دسته په لاس کـــي راکــړی
چې په شهید یاربانده واچـوم ګلونه
دحقـــاني ســـره جـهاد کـــړم
چې یاشهید شم یاغـازي په دنیـــاشمه
دغره په ســـرلاتیـــن بلـــیږي
ګمان مې کیږي مجاهد تـــړون کوینه
دشهـــیدوېـــنوکـــي اثـــردی
څکه روسان په هرمیدان کې ماتې خورینه
دپاسه غـــبرګ جـازونه راغـــلل
الله دی خیرکـــړي په بري مبارکـوینه
دشهـید ویـــنه ســـیلابـــي ده
هره ذره یې تـــوپانـونه جوړ وینه
دمــــوردعاچـــې درســـره وي
په هرسنګربه دی بـــري په برخـــه وینه
دســـرولښکـــرووارخــــطادی
دحق لمبو یې کړه ایرې توپـــی ټانګـــونه
دحقاني دتـــوری شـــرنـــګ دی
په روسي شوبلوباندې بل دي ســـره اورونه
دروس وحـــشي لښکـــری راغلـــي
بیاد« ژوره» په مورچوبمی غـورځـوینه

دحقاني دتـــوری شـــرنــــگ دی
٭ له خدای یې مل وي دې به خوست فتـــحه کوینه
داتحـــاد بـــــیرغ رپیـــــــــږي
له هـــــرسنگره دتکـــبیرآواز راځـــــینه
دخـــوست ځوانان قهـــرمـــانان دي
د«گلم جم»(٤٥) په پوستوېي بل کـــــړل سره اورونه

(ر)

راځـــې پـــردې خـبرځان پوه کړو
چـې یویو والی به بری منځ ته راوړینه
رزق اوروزي یـــې پـــه اورواخـلـــي
چـــې څـوك دکـفروظیـفه اجراکوینه
راشـــه پـــښمـــان دری ته لاړشـــو
چـې خـیالي ورکي په غزاراغلي دینه
راځـــې چـې تـول تـروطن جـارشو
خـدای غیرتي د ی غیرتي سرې ساتینه
ربـــــه دتـــادلارشـــهید شـــم
چـې مجاهدمي په خپل لاس دفن کوینه
راځـــی میـــنو نـــه ورتـــه کیـــږدو
پـــردغـــه لاره تـل دروس پوځونه ځینه

روســـي فـــلزدلـــته شو خاوري
لکه دســـيل او بـــه په سلو لارو ځينه
روس او افـــغان به بـــبرك روغ کا
که راستانه کړي ويشتل شوي كارتوسونه
روزی بالسنت په خوله ور کيښود
نـــابـــغه لاندې د هـــورا نارې وهينه
روســـي ټيـــنکونو ته لا گورې ؟!
زمـــا و ستـــا ميـــني پـــلو نه ړنگوينه
روســـان چـــې مات شي له ځوانانو
د تـهو پك زړه په كـونډور نډو تشـويـنه
روســـي جنـــرال مه وژنې پـريـــږدې
چـــې ماشـــومـان پـری ديرمينه ماتوينه
روس او افـــغان به ځـــه نژدې شـــي ؛
بمـونـــو مات کړه د کلـــونو کوشيـــرونه
روس به لانـــورهم وشـــرميـــږي
که ليډری يـــې لـــه نا اهلوسـره وينه
ژوســـان بـــه ولـــی نـه ويـريـږي
لـه هـــره نـــاوه دتـــكبيـــر نـــارې راځيـــنه .

روسان خوداسې ګاونډیان دي
چې موږ په سمد ـ غر بموند اوروینه
راځې چې ټول سره یولاس شو
په سرو روسانو باندې ډیرکړو ګوزارونه
روسي سئیستم دې خدای بربادکا
دوی په ځړې کې انسانان تباه کوینه
راځه جوړه وطن ته لاړ شو!
یا به غازیان شویابه بایلوخپل سرونه
روسان پخپله دوکه مار وو
چې د دوکې په سین یې ګډ پرجمیان کړنه
رابطه! لاړشه زیری وکړه
چې مجاهد په کامیابي راغلی دینه
روسیه! ځان ته که نروایې
دتېنګ نه کوزشدچې معلوم دېشي حالونه
روس به یې ځنکه سرتد خیژي
دکوموځوکو چې وره پیځې سنکلوینه
روسې مسکو کې یه ژړاشو
چې مجاهد ټوپك یې ولیدل ګردونه
روسان بد ټول دلته ډوبیږي
دتښتې لارې تري اوس وارډوکې دینه

( ز )

زه بـه دې غـبرګ لاسونه ښکـال کـړم
که تا دروس پـه ويـنوسره راوړي ويـنه
زړګـی مـې ځـکـه پـه درزا شــــو
چـې مجاهـدو بانـدې اوري سره اوروـنه
زړه بـه مـې هلته په قـرار شـــي
چـې د " آمـو "په سيند ورتيرشي بيرغونه (٤٧)
زمـازړګـی پـه درزيـــدو دی
پـه سـرک جـنـګ دی طيارې بمباردکوينه
زه دوطـن تر غـروـو جـارشـم
چـې يـې په هره پـرښه جوړ دي سنګرونه
زړه مـې سوری ويـنـې تـرې څاڅـي
زه د شهيد لـه قـبره اوس راغلـې يمه
زمـازړګـی دغـم سـرک دی
چـې يرې ايـريرې سره روسان دراندټانکونه
زمـاځـواني تـرې صدقه کـړې !
پـه ګران وطـن يـې غـر غـرې منلې دينه
زړګـی مـې بيـايد درزيدا شـــو
غـازيان روان شول د "کـابل "په لورې ځينه
زمـوږ به نـورلا خنـد زونـدون وي
چـې مـو په ديـن او وطـن وشول يرغلونه

(۶۷)

زه "وفادار" در تـه اعـلان کړم
زمـا همزو لو په وطـن وکړي ننگونه

زمـونږ وطـن د جـنگ ډگـر شـو
پـکي بهيږي د سرو ويـنو سيلابونه

زمـونږ يـادگار پاتې شـو دنـيا تـه
په سرو دښمـن مولا ډك دي کړنگونه

زمـا وطـن كه رنـگ ويجاړ دی
په لوی دفتر کې دی الله ډير دي رازونه

زمـا تـگ لاره اسـلامي ده
په دې تگ لاره به خدای راکړي جنتونه

(س)

ستـرگی مې شـپې دورځـې ژاړي
چې دپکتيا په غـرونو اوري سره اورونه

سرمې له تـن څخه جـلاکـړي !
كه مې پتـلون دبې ننـگو اغوستي وينه

سـرد اسلام لارکې قـربان کـړه!
چې دجنت حورې غلمان دې نصيب شينه

سپـينی خيـمې دې دراورکـو
لکـه تـناکې چې په زړه خـتلې وينه

سـورلښکر هـغه سـره بـلاده
چې يـابه خور ي يابه وژني يابه مرينه

سپینې ماڼۍ مې خوښې نه دي
دپښت ژوندن تنګه خوکېږه کې تیرومه
سبا به بیا په سرک جنګ وي
نن په سرک غازیانو ایښې دي مینونه
سبا به بیا ټانګونه راشي
دروس له مړوبه دلې ودرمه
سپوږمیه ژرچې پنا ه نشي
دغه تاج ګل شهید مورخاوروته سپارونه
سنګرکې دوه ترېرونه خوند کړي
چې یو ټپي شي بل ېټهږه پرې لګوینه
ستا ترشل ډزي توپک جارشم
زه دې په کلي کې سرلوړې کړم مینه
سین یځې سېورروا غړېې کړوغوښنه
چې دکارمل ملګرې شول روسي ټانکونه
سحرسبا ږرڼا راشي
روس به په شاشي لکه غل اودغله ملونه
سنګرته ځم راپسې راشه
مجاهدین به دې سلام ته راولمه
سهارسهارنرې شمال دي
غازي دلورسنګرپه خوا غزاته ځینه
سنګروال ټپولږ په تانازېږې
چې دې په وینو اوبه کړي دي ګلونه

ستا دسور ي خیکرنه زارشم
چې په دښمن باند ی دجوړوه سره اوورونه
ستا په غیرت باندی مین یم
ځکه له تاسره ترڅنگ جهاد ته ځمه
ستاڅاکت ترغبړ قربان شم
چې دملحد پرمورچل بل کړي سره اوورونه
ستا دزیړي راکټ نه ځارشم
چې له لمبو يې سره روسان کړي فریادونه
سرمې له تن څخه جلاکړی
که مې په شاباند ي گولی خوړلی وینه
ساه مې دحق سنگر کې خیژی
ځکه سلگی مې په خندا خولې ته راځینه
سپوږمیه سروهه راخیژه
(٤٩) په پوري غره دمجاهد وړلی ځینه
ساخاروف وو ی گرومیکوته
دزال زربچي طلسم ماتوینه
سپورت اوسیاست چې جلابولی
ورزشکاران له سریتوبه بیلوینه
ستا شهادت لوی ارمغان دې
دابه آزاد کړی ښکیل شوي اولسونه
ستاترڈاسرو زخمونوجارشم
جانانه رادکړل په زړه باند ې داغونه

تطبیق کړي ،چې زر کلن عمر لري اودپنځمې پیړۍ په لومړیو وختونو کې ویل شوي ده ، کومل د( روه ) دغرونو په سلسله کې یوه مشهوره ذره ده چې دهند دفاتحینو لار وه اوملك خانو دسلطان محمود غزنوي په زمانه کې دپښتنو له نامتو سردارانو ځخه دي چې (خورشید جهان ) اوسعادت،خان تور ترین (فضایل السعادت ) هم دده نوم دهغه عصر دلویو سردارانو تولی کې ښودلي دی ، له پورتني سند ځخه داثابته شوه چې لنډۍ زر کاله دمخه موجودې وې ، ښایي تردي دمخه هم لنډۍ ویل شوې وي چې تاریخي پیښې پکې خوندي وي خو اوس یاله منځه تللي او یا هیرې شوي .»

لنډۍ له ابتدأ ځخه دپرګنو دښادیو اوغمونو سره مل راروانه ده ، موږ ګورو که دیوې خوا په لنډیو کې مینه ، عشق ، ښادي ترنظر راځي دبلې خوایې دمصیبتونو اودپردیو دیرغلونو په وخت کې دیرغلګرانو ظلمونو اوزموږ داتلانو ویاړونو اواتلولیو ته هم په خپلې غیږ کې ځای ورکړی ، په لنډیو کې زموږ دټولنې ټول اړخونه که ویاړونه دي که ویرونه ښه ځان ښودلي شي ځکه دې چې وایي لنډۍ دپرګنو دچاپیریال محصوله ده اودپرګنو شعر دی .

دلنډیو سیند له پخوا ځخه موجونه وهي چې په دې بهیر کې زیات تاریخي حقایق دځان سره رانغاړلی اوپه ډیرو حساسو شیبو

سـبرنـــي کـــال دبـــر ي کـــا لْ د ی
کـــاروان روان دی دوحـدت په لوری ځینه
سنگـــــر دځـــــان پهـــه وینو رنگ کړه
چـــي شاوخـــوا دي ارغوان راوخیژ ینه
ستـــــرگـــي مي ستا حضو ر ته نه شته
لـــویه خــــاونـــــده اددیـــدار په تمه یمه
ستـــا دراکـــتې تــــر گــو لیه ځارشم
ددښمــــن شــــو بلـونه دي ورك كړل گودرونه
ســـتا پـــرهـــــزار ډیـــوي بلــیږي
څـــکه پـــرخـــاور ه دورکړي سره زخمونه
ســـهار مـــاښام دربـــــــي ژاړم
شهیده رادکـــړل پـــرزړه باند ی زخمـــونه
ســـــتا مـــــاشومـــــان راته ژړیږي
شیـــهده ستاراپاتـــي شوي دي زخمـــونه
ســـنــگر پـــــه یار مـــــــي سلام وایه
وکـــړه دپلاراودنـــیکه په دیـن جنگـــــونه
ســـنــگرپـــه یارمـــــي سلام وایـــه
سنگلـــي وطــن ته کافــران راغلي دینه
سنگـــــرپه یارمـــــي سلام وایـــه
وکـــړه په خـــاوره داسلام نـن جـهادونه
ســـنــگرپه یـــارمـــــــي سلام وایه
پـــه لاالهالا الله وکـــړه ننگـــونـــه

سنـــــکرنه ځـم دامـــي وعـده ده
ځمـزولـي تللـــي نن صـبا کې به راځينه

ستـــا پـــرملکـــرو خــوب حـرام دي
نــــن وري تـــر ي اسلام غــزاکوينه

« ش »

شـــــويـــله سـرې لـــبې بليږي
ځکه مې خوښ دي دراکـېتوگـــوزارونه (٥١)

شهــيـد رنگـيــن «خـــاوروتـــه لاړو»
نجيـبـه تـــابــه اللهٔ نـــه خــوشحالوينه (٥٢)

شهيـــــد دقــــام شـــمله کړه نيغه
په قبرېې غلي جوړوچې هيـــــرنه شينه (٥٣)

شيـــن مـــنړ يـــرايره ا يـره شـو
دروس دلاسه پکـــي بل دي سـره اورونه

شبـــــنم به داســــي پـــه گل نه وي
لـــکه خـــوله چې دغازي په مخ راځينه

شهيـــده ابـــخت د ي مــــبار ك شه
لــه اولــــيا وو دې اوچـت دي مقامونه

شهيـــده زمـــا درتــــــه سلام دي
چې دې هډونه پرخپل ملك مات کړي دينه

شهيـــدبـه ولـــي ځـان مـــړبولی
دوارتــــوبــې په ببرك ويلي دينه

شهیـــدان مــړه نـــدي ژونـدي دي
چـــې ملحـــدان یـې په ډیووکوي فیرونه
شـــیرینـــه وروره ارمـــان جـــنه
زه د ې ړنده شم چـــې به نه درسره تلمه
شهــــیده وروره رارســــیبره
سترې ستـــو مانه دې مـزار ته ناسته یمه
شهـــیدان واړه تـــل ژونـــدي د ي
مړخوهغه دې چې دروس په ټنگ کېږینه
شهـــیدان تـهـول دخـــدای دوستان د ي
ځکه ســرونه دالله په رضـا ږدینه
شعـــار یې «کـــور »کـالی ډوډی دی
کورېې شورګور «کالی »کفن ډوډی غمونه
شهـــید دهـــــر وطـن شهیـــد دی
دجنت شمـــې به زمـــونږشهـــیدان وینه
شهیـــد دقـــام شمـــله کـړه نیـــغه
پـــه قـــبرېې ځلي جوړوی چې هیرنه شینه
شهیـــده خـــومـــره بخـــتوربې !!؟
پـــه وینـــوســـورتیر دې حورې پاکوینه
شهـــیده ! پیـــغله دی ځـــوریـــږي
چـــې دجـــنت حورونه ورنه وړې لاسونه
شهیــــدپـــــه بجـگه غونډ ی کیږدي
یـــولاس یـې پرېږدې ماشینداري چلوینه

شهیده ! خدایې ته په نخاځه
چې ځوړوندی یم مینځوره به دې یمه

شهیده ! نه چې راته گوري
شهیدان نه مري ماڼیجن به یې مینه

شمې په گوړې ولې ژاړې
چې دایمان بلې ډیوې ورسره وړینه

شب نامی نه دي چې شي تهولی
له استعماره دواړه خواتورشوي زړونه

شهیدان راغلل ډلې ډلې
زما پریاربانډې پراته دي سپین شالونه

شهیده ځه الله دمل شه
سهارماښام به په دعادرپسې یمه

( ع )

عیش وعشرت پریږدجانانه
نن داسلام لاره کې تیرکړه کړاوونه

عالمه کوم ظلم به ژاړم !؟
زموږبتي خوري دبرچوپه ځوکومرینه

(۵۴)
»عیسی« زما درته سلام دی
چې یوه لحظه له غزانه اخلې لاسونه

(۵۵)
»عبدالله« چیغی کړې په جیل کې
خدای دې تردې هم لارسوالره،ه

( غ )

"غـــزنوي" پــاته ســلام وايــــي
سلام راوليږه چې زړه مې تکيه شينه
غازيانـــو بـــياسلاسمبال کـــړه
خاونده خير کړې چې دروس جگـــړې ته ځينه
غـازيانو گورې په شـانه شــې!
پښتني پيـــغلې موږه ځنـــگ ولاړې دينه
غـازيانـــو بـياقســم خـوړلـــى
افـغانستان ځـه بخارا آزادوينـــه
(٥٩)
"غـــروال" له ســرومـــاله تـــيردى
چـې مې يادېږي دکابل دغروسرونه
غازيـانـو بـيا تـورې تر ملاکړې
لهغلـيمانـوځـځاخلیکســـا تونــــه
غـازيــان رنه تهوپك ورنيغ شـول
دسره کافر ځو کې به گهې ودې شينه
غـازيـان زمريانو غونډې بـريد کړې
داگيډران به مړې لکې ځي تيت سرونه
"غـــزنـــوي" بـــيا سنگره ته لاړو
سرور کوي تول دښمنان له منځه وړينه

غازي تهانګونه دې روان کړه

چې دخلقیانو پرکور پریو ځي تندرو نه

( ف ، ق)

(۶۷)

فضل خالق دمرګي غر شو

موریې دخدای په رضا پورته کړل لا سونه

قام به په هغوزمرو یاري

چې دین ساتي او خپل وطن آزادوینه

قسم په خدای باور پرې وکړه

وطن مې خپل دی په سروو ینو بې ګټمه

قسم په خدای دی خدای پر ستـه

د کمونستو بیخ بنیاد به ورکومه

قربان دې شم یوو لس دزیه !

چې دې روسیانو باندې ډك کړل دوزخمونه

قسم په خدای به درته وکړم

دوطن مینه له ایمان څخه شمیر مه

قسم په خدای اختیار یې نه شته

هسې له شرمه ځان دنیا ته رنګوینه

قومندانان سر یو کیږي

نجیب حیران دی چې به کوم طرف ته ځینه

قلم ، کاغذ په لاس کې واخله

«سید خانه » لیکه دغازیانو یادگارونه

(ك)

کارمله ! کاردې شه له مرگه

چې په بې کاره صورت ږدې کاري نومونه

کارمل ! ته به هم خوشال یې

چې زه پاچایم او لرم روسي ټانگونه

که په روسانو کې وای فکر

په دوکه مهار کارمل به نه دوکه کیدنه

کارمل لاوس هم نه پوهیږي

(٨١)

چې کمریو ته ئې ځوک مړی نه پریدینه

که افغانان یې مهاجر کړل

پرچیان هم پناه گزین دکابل شونه

کارمله ! سبه گټهه دې وکړه

په خپله خونه کې دې بل کړل سره اورونه

کـاردي لـه مـرگه شـه کارمـــله !

چـې دوطـن نامــوس دې گـروېه نـو روکنه

کلــی مې ســرورروسانــو رنګ کـــړو

اوس به دغــم ورځــې په بــل کلــي گالمه

کـــارملـــه ! خونـه دې تـــالاشه

دشاه شجاع تاریخ دې بیا را ژوندې کنه

کـه زه خبروی چې بیلــتون دی

زه به له ګران سره یو ځای سنګرته تلمه

که شر یعــت کـــې اجـازت وای

دواړه ملګرې به یو ځای قبرله تلونه

کاشکې جهاد پـه اتفـــاق شـــي

روسان به ورک شي مونږ به خپل وطن ته ځونه

کـــارملـــه ! داد فتـــــر دې واړه

څوک دې شهید کړ څــوک دې ورک کړل له وطنه

کارمله ! غبرگ زامن دې مړه شـه

چې دخیالي ورکیـودې ډک کـړل زندانونه

کـــارملـــه بـــس دی ظلـم مکـــړه

ډیرې دې کونډې کړې آزار درتـه کوینه

۵۸

که لوی "لاهور" زما په نوم شي

په خپل وطن بپسي به کړمه فریادونه

کارمله مرګ دی خدای میله کړه

چې ددښمن له یاری‌ نه اخلی لاسونه

که زړه مې بند په زولنو کړم

ژړانه خلاص شي برابر وطن ته ځینه

کابل به نن سبا آزاد شي

وری تجلی دآزادی‌ ناري وهینه

کابله ! ستاپه مینه مست یم

که ستا په مینه مې سرخي لوېي پرې کړمه

کابله! زیری مې دربانه دې

ټول افغانان دې په نامه سر ورکوینه

کابل! مې بڼ دی دسروګلو

زه یې بلبل دګل په بڼ ناري وهمه

که له کابله کامیاب راغلي

داتور وریل به له تاجار کړمه مینه

کابل زمادتن جامه ده

دتن جامه به لکه ګل غوندي ساتمه

که په سره اور کـې لولپـه شـوي

افغـانــه تیټ دي نه شول لوړ لوړهمتـونه

که افغـانــان خـواره واره شول

دسرو په سر باندي هم بل شول سره اوروونه

کاشکي شهیدوای داسـي نـه وای

چـي دتـو پـك دا خیستـونه یي مینه

که ددښمـن په خـوار تاوشـوم

بیـامي افغـان مسلمان مه بولئ عالمه

که دوطـن په ننـګ مـړنـه شـوم

ادکـي مـوري را تـه مـه بښه حقـونه

کار مـله ! راشـه مسلمـــان شه

نامـرده پـر یـوده دروسـانـو مجلسونه

کارمله اخدای که ښادي وکـړي

خوچي افغـان ژونـدی په مـخ ددنیـاوینه

کارمل زموږله پښـتـه نـــه دی

داحـرامي وطـن پـه بل چا خـرخوینه

که پـر چمـي وي نـومځورك شـه

کـه مجاهـدوي ړنګـه بنـګه در غلمه

کی یې زموږ مجاهدینو دجګړې په سنګر کې زمزمه کړې او په دې توګه یې داتلانو دمورال داوچت ساتلو او داتلیولیو دخوندي کولو په لار کې خپل رسالت سرته رسولی ، وایی دې لنډۍ دمیوند په جګړه کې زیات نقش لوبولی :

که په میوند کې شهید نه شوې
خدایږو لالیه بې ننګۍ ته دساتینه

دثور ترکرغیړن کودتا وروسته هم دې لړۍ دوام موندلی ، په دې دوران کې هم زیاتې جهادي لنډۍ ویل شوې په هغوی کې ددې ترخنګ چې زموږ دجهاد ویاړونه او ویرونه خوندي شوي دکمونستانو ، دپردیو نوکرانو او روسانو په مقابل کې زموږ دوګړو کرکه او مقاومت هم ښه معلومیږي ، اوس هم لنډۍ دې چې دسپین غر په واورینو څوکو ، دفراه په پراخو میرو اودروسانو په مقابل کې جوړشوي هرسنګر کې دمجاهدینو په خوله زمزمه کیږي ، دجهاد په دوران کې لنډۍ په ډیر ښه توګه خپل رسالت سرته رسولي ، دپرګنو اووګړو نماینده ګي یې کړې اوزموږ له وګړو سره په غم اوښادي کې مل راروانه ده

په جهادي لنډیو کې موږ دخپل شهید پالونکي ملت ددولس کلن اتلوال مقاومت بیلا بیل اړخونه لیدلی شو ، موږ ګورو چې کله په افغانستان کې دثور کرغیړنه کودتا سرته ورسیده ، ځای پرځای دکمونستانو په مقابل کې دپاڅون تخم وشندل شو خال ،

کــه ســل اوزرکلــونه تیــر شي

هــیږبه مــې نشـــي دکــابـل شنه چمنونه

کارمله! اوس که نروې تینگ شــه

چې دحق زوردرته معلوم په خپله شینه

کارمــله! ډیـر ظلــم دې وکـــړ

پر گلو ښکلي وړکي توري خاورې خورینه

که داسلام په نــوم شهیدشـــوې

داسرې جـامې به دې په کلیو گرځومه

که دغزاپه دوړو خړوې

دسرپــه شـال بـه درنـه لرې کړم گردوڼ

که په شمار زر کالونه تیر شــي

هیــر به مې نه شي د شهید وروړفریادونه

که ژوند وژر به را ښکاره شـــي

دتـورو شپــو تــر پلـو لانـدې سـهارونـه

کابله ! بخـت دې مبارك شـــه

چـې پـه نامـه دې افغـانان سـرورکوینه

که مجاهدې تـوپـك واخـله !

په خوست تعرض دې په دښمن وکړه وارونه

که په شمارزرکلونه تیرشي
هیر به مې نشي دشهید چلیم یا دونه
که په رښتیا ملی رهبر یې
ببر که راشه چې نژدې دې وینمه
کمونستي لکه خپسکه
دختمو پوزه خپل منطق ته جوړوینه
کمونیستي به کم اونیست شي
چې بریژنیف دغروزمري راویښوینه
که په غزاکې را شهیدشوي
(۳۹)
چکن ښیکري به دې دقبر جنډه کړمه
کابل دښو ځوانانو ځای دي
تانه به ویرشی دکابل هوا پمنه !
کمونستی استعمار څه دی ؟
هغه ښامار دی کوم چې خپل بچونی خورینه
که پښتونخوا شه لوتمی لوتی
دلینیزم بوتمی هم وتلی دینه
کوځی به نیمه شپه جاروکړي
له ځانه تور زړونه به ځنګه پاکوینه

که سل پنجرې هم ورنه تاوشي

زمري زمري دي سپي سرنه ټيټوينه

که په مورچل کې مسکه نشې

ويشتلی زړه به مې په څه تکورومه؟

که دې شمله ټيټه کړی ياره

شليدلې هيلي به په چا پورې ترړ مه ؟!

(ګ)

ګولۍ وريږي ډګر سوردی

سره پر چميان بې کلمې دوزخ ته ځينه

ګوتې قلم پرې افتخار کړي

چې زه پرې ستا يم دشهيد غيرتي وينه

ګوره زندان کې تسليم نه شې

مجاهدين ستا په همت فخر کوينه

ګريوان مې بيا پله او بنکو لوندی

دچاله غمه ستر ګې اوښکې تويو ينه

ګوری بې ګوڅه بې کفنه

داستعمار ګوداګي يو په بل پسې مرينه

گومان کوم دلسته روس ښخیږي

دپیـرنگـی قشـون دمـاتې علتـونـه

گـوره چـې واردي خطـانـه شـي

چې وارخطا منډې شروع کړي راکټونه

گـوره دخـدای فـرض درپه غـاړه

سنـگر ته نـه ځی لامدام کوی خوبونه

(ل)

(۹۵)

لعیـن یـکـه وروردشیـطان ؤ

لـه افغـانانـو یې ډك کـړل زندانـونه

لـه غـیرتـی مجـاهد جـارشـم

سرورکـوي خـوخپل وطـن آزادویـنه

لـه دنیـا ولاړې بـې دیـدنـه

په آخرت کښې به دی تینگ نیسم لاسونه

له ښکـته سره آسـونه راغـله

وروومې نیولي داشکي جبهې ته ځینه

لکـه عسـکر چې وي باجـاتـه

داسـې شهیـد ته پـرښتې ولاړې وینه

لیننه ! بیـخ بوتهې دې ووزه

چـې بیـادې بل نشي په مینه کې اوروونه

لکه د بت په چوکۍ ناسـت دی

«ببر» [۹۰] خنـاس دی خپـله خاوره خرڅوینه

لـوراوسـو تهك يـې په كـارشـي

لـه زرهپـوشـوكـه را وباسي سرونه

لكـه دغـرومغـروري څـوكـي

دهر افغان سردې رب داسې جگ لرینه

له ملـكه شنې لـوخړې خـیژی

وینې تو بیږی چې روسان راغلي دینه

لعنت په تاغـل - دوكه مارشـه

چـې پـه اشـرافوخلكو بدې اشرارنوفونه

له سروكـفارسـره جنـگ دی

سپینې سپینی مې څوا نان بدی پركنداغونه

له تهینكه دوه گوتې سرلوړكړه

چې په مجلو غزې دزړه زور دروښیمه

له دښمن تیښتهٔ پـكارنـه ده

چـې بدنامـې يې انسـان تل ذلـیلونه

له پرچمیا نوګیله نشته
له خو دفروشو به څوك څه طمعه لرینه ؟
له ځوان شهید سره منبا ئیږي
که تر ملکو یې هم بره ځروینه
له دنګو دنګوغرو مې جار کړي
دلته مات شوی دي ددیروجګ سرونه
لکه تهوپکټ ته کارتوس ورکړي
ستادل پړي وه چې په ټانك وروختمه
لکبه په للمه چې وره اوری
په بمباریو هممت وده کوینه
له ننګه سل ځایه ماتیږي (۱)
دسرولسبکرویس دایوصفت منمه
لاړشه سنګرته جهاد وکړه
همزولی ستا نن لوړي تندی تیروینه
(م)
مجاهد واړه شنه زمري دي
داپرچمیان دشوروي ګیدړي دینه

مجاهدین به خدای کامیاب کړي
تهوله دنیا کې به روسان وشرموینه
مجاهدین په اتفاق دي
ددین په لارکې شیطانت نه قبلوینه
مجاهدینو سره تهول شی
سبا په دې لاره تیریږي کتارو نه
مجاهدین غزاته لاړل
دسره روسي په سربه بل کړي سره اوروینه
مومنه نن دغزا ورځ ده
د اسلام خاورې ته روسان راغلي دینه
مورې! دپلارتوره مې راکړه
د روس په وینو یې زنګونه پاکومه
مادهغه سنګرنه جارکړی
چې مجاهد پکی وهلي ځنګنونه
مادهغه تهوپک نه جارکړی
چې پرې وروسی وژلی وینه
مجاهدین واړه تنوتیان دي
په زړه زخمیان دي شوروریان یې خورینه

مجاهد ینوځان تیارکړ
اوس درخصت دوعاکوي سنګرته ځینه
مجاهدین سنګرته ولاړل
دپاك الله دمرحمت امید لرینه
مجاهد ټول په دین مین دي
ځکه دکفرمقابل ته ورداننګینه
مجاهد بیاتعرض ته لاړل
الله دی خیر کړي چې زخمیان نشی مینه
مادجاهد دلاری ګل کړي
چې مال مې نه خوری مجاهد مې بویه وینه
مجاهدین په اتفاق دي
ددین په لارکې په شاتګ نه قبلوینه
مادپکتیاترغرونو ځارکړي
چې یې دسرورو سانو مات کړل ورمیږونه
ملادې تره توپك را واخله
په خوست تعرض دی مجاهد سنګرته ځینه
مادپکتیا ترغرونو ځارکړی
چې یې په هره پرخه جوړدي سنګرونه

مجاهد دیر په ارمان لاړو
موري اخیستي کفن ،کور کې پاتې شونه
مزی خو تا و کړې شهیده !
چې دجنت دګلوته کوې سیلونه
مسلمانان به کامیابیږي
دغه روسان کافران خدای غرق کړي دینه
موري «برناو»توپک مې راکړه
په وطن جنګ دې زه خپل ځان شهیدومه
مجاهدین سره یو کیږي
روسان حیران دي چې به کوم طرف ته ځینه
ماته له خپله ځانه ګرانه
افغانستانه ! ژړوي مې ستا یادونه
ملا دې تړه توره را اخله
په آریوب راغلل د روسانو تور ټانکونه
مجاهدینو آرام مه کړې
ولې هیرو شول خوږ یانو شینکي با غونه
مجاهد سر په لاس نیولی
دقوماندان په قوماندہ جهاد له ځینه

ملیه ترلي وروړ مې ورك دی
ملیه ترلي ځوانان وکسم وژاړمه

ما دوطن تر شیږو جار کړي
چې د جانان په وینو رنګ شایسته وینه

ما د بغلان تر لړی جار کړي
چې پکې ورك شول د روسانو ډیر پوځونه

ما د لوګر ترسیمی جار کړي
چې یې د سرو پوځونو مات کړل ورمیږونه

مسلمانانو غیرت وکړی
افغانستان ته ملحدان راغلی دینه

مخامخ نیغ ورځه شانه کړي
روسي مرمی په افغان نه کړي تا ټیرونه

مال یې تالا سریې قلم شه
چې د وطن کې راته بل کړل سره اورونه

ما سره نور غمونه نشته
غم دوطن دي چې مدام مې کړوینه

مجاهدین چې ټوپك واخلي
هغه ساعت په دښمن بل کاندي اورونه

خال پاڅونونه پیل شول او ورو ، ورو دی پاڅونونو په ټول هیواد کی غزونی وکړی او پر وګړو غبرګ شو چی :

په کمونستو دوکه مه شی !

دوی مزدوران دی ، کریملین ته یی ګټینه

توره له تیکی نه، بهر کړه

په دین غزاده ، لوی ، واړه سنګر ته ځینه

ورونو بوړی توپك راواخلی

زموږ په ګران وطن روسان کړی یرغلونه

ګورو چی لنډیو په څومره ښه ډول دپرګنو او زموږ دوګړو هغه حالت خوندی کړی هلته چی دکمونستانو سترګی سری وی اوپرکلیو ، بانډو او ښارونو کی پرخلکو ناروا کارونه اوظلمونه پیل کړی و ، دخلکوپه رګونو کی وینی په غورځنګ شوی وی او بس همداسی یوه غږ ته منتظر و چی په یوه غږ دکمونستانو (خلقیانو ، پرچمیانو ) په مقابل کی عمومی پاڅون وکړی ، اوبیا ګورو کله چی کمونستان اودهغوی باداران (روسان) دخلکو له پاڅون څخه په ویره کی شول ، دنسکوریدلو نښی نښانی یی ولیدی نو هماغه و چی زموږ داتلانو پر ټاټوبی یی مستقیم تیری وکړ اوداسی وانګیرله چی ښایی افغانان ښکیل کړی خو هماغه وخت هم زموږ خلکو خپله اراده ورته څرګنده کړی وه اودماتی غږ یی پری کړی و: